د

# عبدالقادرخان ختک

## دیوان

تحقیق، ترتیب

پروفیسر جهان زیب نیاز

پیش لفظ

پروفیسر ډاکټر راج ولي شاه خټک

پښتو اکیډیمي پېښور یونیورسټي

1

د

# عبدالقادر خان خټک

# دیوان

تحقیق، ترتیب

## پروفیسر جهان زیب نیاز

پیش لفظ

پروفیسر ډاکټر راج ولي شاه خټک


## پښتو اکېډمي پېښور یونیورسټي

---

د پښتو اکېډيمۍ د مطبوعاتو سلسله نمبر ۵۳۶

---

د کتاب نوم ——— د عبدالقادر خان خټک ديوان

تحقيق و ترتيب ——— پروفېسر جهان زېب نياز

اشاعت ——— مارچ سنه ۲۰۰۲ء

کتابت ——— لطف الله

پروف ——— قاضي حنيف الله حنيف

چاپونکي ——— ملت ايجوکېشنل پرنټرز لاهور

خورونکي ——— ډائرېکټر پښتو اکېډيمي پېښور يونيورسټي

بيعه ——— ۱۸۰ روپۍ

د محمد جاويد خليل په اهتمام په ملت ايجوکېشنل پرنټرز
لاهور کښې چاپ شو او د پښتو اکېډيمۍ پېښور يونيورسټۍ
نه خور کړے شو.

# پیش لفظ

عبدالقادرخان ختک دستر خوشحال خان ختک زوئ٬ عالم صوفي سالک او نابغهٔ روزګار شاعر تېر شوے دے - دخپلې کورنۍ او دخپل عظیم پلار د ادبي روایت پالونکے عبدالقادر خان ختک دخپل انداز او خپل اسلوب منفرد شاعر دے.

د عشق و محبت د مضمون دا ښکلے شاعر هغه هومره چا پېژندلے او نمانځلے نهٔ دے - لکه څومره چې پکار وو - ددې وجه شاید دا وي چې دخپل دور د دوه وُو لویو او مقبولو شاعرانو تر مېنځ ـــــــــــه پیدا شوے وو - او پښتانهٔ چې سخن فهمي کمه او طرفتداري ډېره کوي - ددغه خوئ په بنا د عبدالقادرخان ختک لهٔ مقامه څوک په پوره دول خبر نهٔ شول - کنې څومره ښکلي پاک سپېڅلي خیالات چې دهٔ په شعر کښې بیان کړي دي - په کوم کمال ئې بیان کړي دي - دهغې ثاني لټول ګران دي - د نادرو تشبیهاتو د ښکلې زمکو مترنم بحرونو او د علوي خیالاتو شاعر عبدالقادرخان ختک چې د مجازي عشق و محبت او بیا د تصوف د حقیقي عشق د کېفیاتو مشاهداتو او ادراکاتو بیان څومره په خوږ او دلنشین انداز کښې کړے دے - دغه کمال فن د پښتو ډېرو کمو شاعرانو نصیب شوے دے - د علمي فني او ادبي اسلوب د لوړ معیار دیوان ئې د کمالِ فن ظامن دے - خو شرط د لوستو دے او بیا د پوهېدو او پوهولو هم دے - کهٔ چرې په دې سیمه غېرجانبدار تنقیدي شعور عام شي - نو دا خبره په یقین سره کېدے شي چې عبدالقادرخان ختک به د خوشحال خان ختک او د

رحمٰن تر مقامه ورسولے شي۔

دا صوفي سالک عالم او نادر شاعر او نثرنګار په کال ۱۰۶۳ھ کښې پيدا شوے دے ۔ دخوشحال خان په زامنو کښې شايد په لسم نمبر راځي۔

که هر څو خپل پلار يې تعريف هم کړے دے ۔ مينه يې هم ورسره کړې ده ۔ او علمي او ادبي تربيت يې هم ورکړے دے ۔ ولې بيا هم عبدالقادرخان ختک دوخت او زمانې او قسمت ددغه فيصلې نه کيله من ښکاري ۔ شايد دا ارمان يې هم کړے وو ۔ چې دريغه دے دخوشحال بابا په مشرانو زامنو کښې وے۔ دخپل پلار سره د زبردستې مينې له مخه يې دهغهٔ په علمي جدوجهد او تحريک کښې فعاله برخه لرلې ده ۔ خو په طبيعت اومزاج درويش صفت وو ۔ نو دخپل تره فقير جميل بېگ سره هم ډېر نزدې پاتې شوے دے ۔ که هر څو په طريقت کښې دنقشبنديه سلسلې پيروکار وو اودخپل روحاني تربيت استاد يې شيخ سعدي لاهوريؒ يادېږي ۔ ولې دژوند زياته برخه يا آخري برخه يې دخپل سالک تره فقير جميل بېگ سره تېره کړې ښکاري ۔ دخاندانې کشالو جنګ جګړو نه کناره کش شوے وو ۔ ولې زمانې معاف کړے نهٔ ښکاري ۔ اوشايد حُکه سره ددومره لويُ ادبي مرتبې يې تر اوسه مزار قدرې معلوم نهٔ کړے شو ۔ دا ددغه خاندان دخوشحال بابا نه روستو دبې اتفاقئ او سياسي اغراضو دهوس اوحرص نتيجه ښکاري ۔ کنې دا شاعر خو داسې نهٔ وو ۔ چې روضه پرې نهٔ وے جوړه شوې ۔

عبدالقادرخان ختک يو ښتونے عالم فاضل شاعر وو ۔ دپښتو ژبې کوم خدمت چې يې پخپل وخت کښې کړے دے هغه دخوشحال بابا نه پس دعلمي معيار په بنياد دپښتو دپاره يوه لويه کارنامه ده ۔ شايد چې په پښتو کښې يې نور ديکل هم

ډېر کړي وي - ولې کوم اثارچي يې موندلي شوي دي - په هغو کښې يو د اشعارو ديوان دے - چې بېش بها فني شعري خزانه ده - د حديقهٔ ختک په نوم هم دغه ديوان مشهور شوے دے .

د ديوان نه سوا يې ګلدسته د سعدي" د ګلستان انتخابي ترجمه ده - په لوستو خلقو کښې ستائيلے شوے کتاب دے . نصيحت نامه يې مثنوي ده - څلوېښت حديثونه يې په پښتو ترجمه کړي دي - د يوسف زليخا مثنوي يې د مولانا جامي نه په پښتو مثنوي ترجمه کړې ده - او هم يې د قصيده برده ترجمه کړې ده - د پښتو ژبې او ادب سره د مينې او صدق دا دومره لوئے کار يې د ستر مقام د ثبوت د پاره کافي دے . ؎

سرې سرې اوښکې په ګړوان عبد القادره
دا مې يار ته د ياقوتو مهماني ده

عبد القادر خان ختک چې په کوم کيفيت کښې د الانديني اشعار ويلي وو - خو زمانه که هر څو هغه له خاطره غورځول وغواړي - د دغو اشعارو په بنيا د به مدام بيا بيا راښکاره کيږي - چرته يوه ورځ خو به يې اولس د حقيقي مقام نه خبر شي - عبد القادر خان ختک وائي . ؎

د صبا په حال غوټۍ د نوبهار زده
د خزان وهلي وائي صبا نشته
سترګه ور به څه باور ورباندې وکړي
که ړانده نارې وهي چې رڼا نشته

دا نابغه شاعر د ۱۱۲۵ھ (۱۷۱۳ع) خوا وشا وفات شوے دے .

د عبد القادر خان ديوان چې افغانستان او پاکستان کښې د مختلفو پوهانو

لهٔ خوا وخت په وخت شائع شوي دي . ولې دغه ټولې مودې راسې بيا نایاب شوي وو . نو پښتو اکېډمۍ د پښتو نوستونکو دپاره دوباره ترتيب کړو چې شائع شي او تر پښتنو ورورسي .

پښتو اکېډمۍ په دې لړ کښې دلوئ استاذ د پښتو ژبې عالم پروفيسر جهانزيب نياز خدمات د دې ديوان د مرتب کولو دپاره ترلاسه کړل . پروفيسر جهانزيب نياز په ځېل زيار د دې ترتيب او تدوين اوکړو . زهٔ په دې زيار د هغوئي مننه کووم او ورسره دا وضاحت هم ضروري ګڼم چې دا ديوان په هغه وخت کښې کتابت شوي وو . کله چې نوي املا رائج کړې شوي نهٔ وه . نو ځکه د دې په وخت د راوستو دپاره دا هم په هغه زړه املا کښې وړاندې کولې شي . چې يو د وخت په تقاضا ضروري وه او بل د مالي اخراجاتو سر دوباره مسئله وه . نو زما يقين دے چې لوستونکي به په دې فيصله خاطر نهٔ درنوي . د متن نه سوا نور اضافي ليکونه په نوي املا کښې وکړې شول .

زهٔ د دې اهم ديوان د چاپ کولو دپاره د پېښور يونيورسټۍ د وائس چانسلر پروفيسر ډاکټر ذوالفقار ګيلاني ممنون يم چې د يونيورسټۍ په مالي مرسته دا کتاب د شائع کېدو جوګه شو او هم د مالي امورو د بندوبست په لړ کښې د پېښور يونيورسټۍ د ټرژرار ډائرېکټر فنانس ډاکټر ثناء الله شکريه ادا کووم . او ورسره د يونيورسټۍ د ډپټي ټرژرار زاهد ګل ډېره ډېره مننه کووم چې د مالي وسائلو کارې اسان کړو .

زهٔ د دې ديوان د اشاعت په سلسله کښې د خپلو ملګرو ښاغلي محمد جاويد خليل صاحب ، قاضي حنيف الله حنيف او د ښاغلي لطف الله شکريه هم

ادا کووم . چې ددې کتاب په تیارې کښې ئې زیاد او محنت کړې دے . د کتاب د ښکلي ګېټ اپ طباعتي معیار او په وخت د شائع کولو د پاره د خپل ګران ملګري ښاغلي عنایت الله ګران ممنون یم چې د پښتو اکېډمۍ د طباعت کار هر کله په مینه او پښتنه جذبه کوي .

پروفیسر ډاکټر راج ولي شاه خټک
ډائریکټر پښتو اکېډمي
پېښور یونیورسټي

نحمدهٗ ونصلي علیٰ رسوله الکریم

# هنداره

د عبدالقادرخان ختک دیوان په وړومبي ځل په کال ۱۳۱۷ شمس کښې د ښاغلي عبدالحئي حبیبي په تدوین او تصحیح له قندهاره چاپ شو.

په دوئم ځل د ښاغلي همیش خلیل په ترتیب او تدوین د کال ۱۱۹... دیوې قلمي نسخې او قندهار چاپي نسخې د مطالعې او مقابلې په نتیجه کښې چې د عبدالقادر خان ختک کوم دیوان مرتب کړو، له "دارالتصنیف" پښبوره ئې شائع کړو. د غه اخرالذکر مقابلتا د اول ذکر دیوان نه ترډېره حده بشپړ د ے.

په کال ۱۹۶۹ء کښې ښاغلي سید انوارالحق هم د څو قلمي نسخو او ذکر شوے قندهار د چاپي نسخې سره د مقابلې نه پس د "حدیقهٔ ختک" په نامه د عبدالقادر خان دیوان د "یونیورسټي بک اېجنسي" پښبور له خوا شائع کړو. دا خبره د تعجب وړه ده چې موصوف پخپله مقدمه کښې د پښبور د چاپي نسخې نه هډو د سره ذکر نهٔ د ے کړے. حالانکه دا د "حدیقهٔ ختک" نه دوه کاله وړاندې چاپ شوے د ے.

د عبدالقادرخان د دیوان دا اوسنۍ او دریمه چاپي نسخه ما د

پښور چاپ د ذکر شوي چاپي نسخې او پښتو اکېډېمۍ د دوي خطي نسخې سره د مقابلې نه پس تیاره کړه - ددې نسخې بنیاد هم د پښور چاپي نسخه ده.
البته د دواړو ترمینځه واضحه فرق مې په حاشیه کښې په ګوته کړو.
د پښتو اکېډېمۍ ذکر شوې نسخه په کال ۱۲۷۵ھ کښې لیکلې شوې ده. چې په ق - ۵۳۵ نمبر د پښتو اکېډېمۍ په قلمي نسخو کښې محفوظه ده.

جهان زیب نیاز

مخففات:

(۱) (پ) - د پښور چاپي نسخه
(۲) (خ) - د پښتو اکېډېمۍ خطي نسخه
(۳) (ق) د قندهار چاپي نسخه

---

# مقدمه

---

عبدالقادرخان دخوشحال خان ختک زوئ دے - د کال ۱۰۶۳ سنه د ذي الحجه پهٔ پنځویشتم تاریخ (مطابق نومبر ۱۶۵۳ء) پهٔ خپل کلي اکوړه ختک کښې پېدا شو - ددهٔ د پېدائش تاریخ د ابجد و پهٔ حساب هم ددهٔ له نامې "عبدالقادرخان" ځخه راووځي - عبدالقادرخان پرته دیو شاعر ادیب، او عالمه یو نامور سپائي هم وو- چې دخپل پلار له تربیته ئې ښهٔ فائده او برخه موندلې وه - پهٔ عربۍ او فارسۍ ژبو ئې ښهٔ عبور لرو - او طالبانو ته ئې پهٔ دغو دوارو ژبو کښې درس هم ورکولو - دخوشحال خان ختک دور چې د پښتون ملت د شاندار علمي، ادبي، تصنيفي او تاليفي دور وو- عبدالقادرخان ختک هم پکښې خپل شاندار رول لوبولے دے - عبدالقادرخان د قلم سره سره د تورې هم ښهٔ مړنے وو - د نوښار پهٔ قلا د حملې پهٔ وخت ئې دیوې زبردستې مړانې مظاهره کړې وه - معروف مستشرق ميجر راورټي خو ددغې فتحې سهره هم د عبدالقادرخان پهٔ سر تړلې ده - پهٔ خپل کتاب "سیلکشن فرام دي پوئٹري آف دي افغانز" کښې ليکي -

"هم داهغه شاعر وو چا چې پهٔ قلا حمله وکړه او دمسلسلو

درې کېښتو د نوي جنګ نه پس ئې فتح وکړه -"

د پورته ذکر شوي جنګ نه علاوه دګنبت په جنګ کښې هم عبدالقادرخان خټک دخپل مټ يوه زبردسته مظاهره کړې وه - دغه جنګ چې په کال ۱۰۸۶ھ کښې شوے وو. اووقتي طور خټکو پکښې ماته کړې وه - ولې خټک چې په کوم جوش خروش او جذبه جنګيدلي وو - دهغې په حقله خوشحال خان خټک وائي . ـــه

بنه ځوانان چې دګنبت په مېدان ومړل
دهرځوان په زړه کښې ننګ افغاني وه

او بيا هم په دغه ذکر شوي جنګ کښې دعبدالقادرخان دمړانې او بهادرئ په ضمن کښې وائي -

دغليم سره په اس غاړه غړۍ شو
دعبدل دمړنتوب بخره کافي دا

دخوشحال خان له دغه شعره معلومېږي چې هم په دغه جنګ کښې د عبدالقادرخان مقابله دخپل يو حريف ځنګه دې حد ته رسيدلې وه - چې دَاس دپاسه ئې هم دمقابلې په دوران کښې ديوبل سره غاړه غړۍ زور ازمائي کړې وه - چې عبدالقادرخان پکښې ژوبل شوے هم وو.

عبدالقادرخان دخپل اهليت او قابليت په وجه دخپل پلار دتوجه لاندې وو - او دهغهٔ په تعليم او تربيت کښې ئې لوئ لاس وو. خوشحال خان زمونږ دغه شاعر سره دخپل زړهٔ دقرب اظهار او دُعا په دغو الفاظو کوي - ـــه

بنهٔ زوئې دبابا دے تل دې ژوي په جهان

---

ـه مقصد عبدالقادرخان دے

او شاید د خوشحال خان هم له دغه شعره مجبر راورتي هم دا استنباط کړے وي چې وئیل ئې -

" عبدالقادرخان د خپل پلار د شفقتونو نسبتًا زیات حقه دار دے"

د"پټه خزانه" مولف محمد هوتک لیکي -

" د خوشحال بېګ تر مرګ پس عبدالقادرخان په ۱۱۱۳ھ کابل کښې لیږلے شوے وو - چې د ختکو د قوم له خوا کابل ته راغلے او د کاروانونو د تېرېدلو خبرې ئې د بنګښ پر خوا کولې - عبدالقادرخان غښتلے او کړندے خان وو - د ختکو خانان ئې تابع وو - "

اګر که د پورته اقتباس له مخه د عبدالقادرخان کابل ته د تللو تائید خپله د هغه دا رباعي هم کوي - ؎

د خپله بخته وچا ته زار کړو
د چرخ ناسازې وچا ته شمار کړو
ډک دے له ښکلیو د کابل ښهر
هومره څوک نشته چې یو ترې یار کړو

پاتې شوه دا خبره چې "د ختکو خانان ئې تابع وو." د پټې خزانې د دغه جملې نه دا سې معلومیږي چې په کال ۱۱۱۳ھ عبدالقادرخان د خپلې قبیلې مشر وو چې وروستو د حالاتو بدلېدلو سره په څه وجوهاتو په کورکلي پرېښودلو مجبور شو - خو دا مجبوري د مشرۍ او خانۍ د لاښځو نه سوا آخر بله څه کېدلے شي ؟ په قول د مجبر راورتي -

" د خپل ورارهٔ افضل خان د وړاندې سر تیټول د عبدالقادرخان

دپاره ګواښنه وه. او دهغهٔ جمله ورونړه دعبدالقادرخان
پهٔ سردار جوړولو کېښي دهغهٔ سره وو - ولې دا هرڅهٔ
بې فائدې ثابت شول - پهٔ موروثي بنا د قبيلې متفقه فيصله
دافضل خان پهٔ حق کېښې وه - نتيجه دا شوه چې افضل خان
دهغه وخت ددستور مطابق ددغو مشکله بس يو قابل عمل
حل دا وګڼلو چې د ټولو مخالفو عناصرو نه ګانې نجات بيا مومي.
نو عبدالقادرخان، دهغهٔ لس ورونړه او دهغو متعدد زامن
ئې پهٔ يوه ورځ قتل او يوه کنده کښې ښخ کړل - او دغه شان
د سردارۍ د سردردي نه ئې نجات بيا موند."

دعبدالقادرخان د تاريخ وفات، ژوند د اخري حالاتو او کفن دفن
دځائے ځائينړي پهٔ حقله صحيح طور لا څهٔ هيڅ نهٔ شي ويلے - البته دلاندې
درج شعر لهٔ مخه ئې ژوند تر کال ۱۱۲۵ھ يقيني دے. ؎

دوه شپېتهٔ کاله دې لاړ عمر پهٔ لهو
عبادت دې پهٔ عادت نيکي پهٔ سهو

دپېداکښ د کال ۱۰۶۳ھ سره چې ۶۲ جمع کړے شي - نو دشاعر ژوند تر کال ۱۱۲۵ھ
پورې يقيني کړي - ضروري نهٔ ده چې د ذکر شوي شعر د وئيلو نه سمد ستي
وفات شوے وي - نو ځکه امکان لري چې د کال ۱۱۲۵ھ نه وروستو هم څهٔ موده
ژوندے پاتے شوے وي.

عبدالقادرخان دخپل ترهٔ فقير جميل بېګ لور نکاح کړې وه - دهغهٔ اولاد
پهٔ قادرخېلو يادېږي - عبدالقادرخان پهٔ خپل ټبر قادرخېلو کښې پهٔ "خليفه صاحب"
شهرت لري - ددې وجه دا کېدے شي چې هغهٔ دخپل ترهٔ او سخر نه څهٔ روحاني

فیض حاصل کړے وي.

فقیر جمیل بیګ خپله هم دحضرت شیخ رحمکار رحمة الله علیه مرید او خلیفه وو چې وروستو بیا ددنیا جاه وحشمت ته ئې شا کړه. ریاضت وعبادت او فقر و درویشۍ ته ئې مخه کړه.

دعبدالقادر د شاعرانه عظمت په قله دهغهٔ څنو همعصرو او بیا وروستو کومو شاعرانو چې د عبدالقادرخان ستائنه کړې ده - هغو کښې پیر محمد کاکړ اشرف خان هجري، قاسم علي افریدے او قاضي میراحمد شاه رضواني پیش پیش دي.

## تصنیفات، تالیفات او ترجمې :-

(۱) داشعارو دیوان

(۲) ادم درخانۍ - چې د شاعر ورور صدرخان خټک هم لیکلې ده

(۳) یوسف زلیخا، پښتو منظومه ترجمه

(۴) حدیقهٔ خټک

(۵) ګلدسته (پښتو کښې دګلستانِ سعدي منظومه ترجمه)

(۶) نصیحت نامه

(۷) چهل حدیث

میجر راورټي لیکي

"چې دعبدالقادرخان موجوده خاندان دهغهٔ شپږ ـ پورې تصنیفات بیا نوي - څو نومونه ئې اوس چاته نهٔ دي یاد - سوائے دهغو یو څو نه چې پهٔ معمو او چیستانونو وغیره مشتمل دي.

## شاعري :-

عبدالقادرخان ختک دنظم د مختلفو اصنافو لکه غزل، قصیدهٔ، رباعئ قطعه مثنوي، ترکیب بند، ترجیع بند، مربع او مخمس یوه برخهٔ درنه پنکله پرېښې ده. دهغهٔ پهٔ کلام کښې دعشقیه، اخلاقي او صوفیانه مضامینو او افکارونه علاوه پهٔ معاشره انتقاد او دقدرتي مناظرو عکاسي هم موجوده ده، جدّت، حسنِ بیان دخیال ندرت، تشبیهه او سوزوګداز سره سره شوخي هم دعبدالقادرخان دکلام خصوصیات دي. پهٔ دغه وجه دهغهٔ شاعري یوه جامع او متنوعه شاعري ده. پهٔ خپل کلام کښې دشاعرانه خوبو او عظمت داحساس لسهٔ مخه وائي. سه

دسخن خوبي همه لرم موجوده
زهٔ عبدالقادر محتاج دسخندان یم

ولې سره دذکر شوؤ خاصیتونو دهغهٔ د کلام زیاته برخه پهٔ غزلیاتو مشتمله ده. ځکه نوهغه دپښتو پهٔ عالي ادب کښې بنیادي طور یو غزلګو شاعر دے. دهغهٔ د غزل پهٔ ژبه درحمٰن بابا اثر ډېر واضح دے. اوهم دغه وجه ده چې لکه درحمٰن بابا دهغهٔ شاعري ساده، سلیسه او روانه ده چې پهٔ ډېره ساده ګئ او روانئ خپل جذبات بې ساخته اوپهٔ یو موثر ډول بیانوي. ددغو خوبیو لهٔ کبله دعبدالقادرخان غزل زمونږ پهٔ لرغوني ادب کښې د رحمٰن بابا نه پس یو ښکاره اوجوت مقام لري. چې دډېرو لفظي اومعنوي خوبیو حامل دے. اودا ځکه چې هغهٔ نهٔ صرف انساني مقاصد او ادبي مطالب دغزل دپردې لاندې راوستل. بلکې دخپلو محسوساتو مصوّري ئې هم دغزل پهٔ شکل پېش کړه. دعبدالقادرخان غزلې دخپلو مخصوصو روایاتو له مخه پهٔ پښتو

غزل کښې په يو داسې مقام ليدلے شي . چې باوجود خپله نظيره، بې نظيره هم ښکاري . دموزونيت ، اسلوبِ بيان ، موضوع او غزل د دستور او روايانو د پابندۍ له اعتباره په پښتو غزل کښې د سهل الممتنع په امثالو کښې ځانله ديو مثال درجه هم لري . دا حقيقت شاعر خپله هم محسوس کړے وو . چې اظهارئې داسې کوي . ؎

هـر غزل مې مبرّا دے لهٔ تکليفه
پهٔ ساده پښتو ويل شيرين کلام يم

حُسن و عشق يو داسې پائنده او تابنده سپرلے دے چې د دنيا د هر شاعر پهٔ کلام کښې پهٔ څهٔ ناڅهٔ رنګ محسوسيږي . خو چرته شوخ او چرته تت . ولې د وجود نه ئې انکار نهٔ شي کيدے . عشق چې د حصولِ حُسن ديو مسلسل ناتمام جد و جهد دويم نوم دے . دا دومره قوي جذبه ده چې عاشق له مرګ هم نا اشنا کړي او يو جاودان ژوند ورکړي . ؎

هرگز نه ميرد انکه دلش زنده شد به عشق
ثبت است بر جريده عالم دوام ما

عشق پهٔ صوفيانه ادب کښې هم وي . او دغه قسمه ادب د قومونو د روحاني او ذهني ورتې د ودې سبب ګرځي . چونکې انساني ژوند کښې عشق يو مرکزي حيثيت لري . او بيا پهٔ تيره تيره چې صوفيانه ادب کښې کومه معنی ښندي پرته د هغې زموږ مقصد د عبدالقادرخان خټک په شاعرۍ کښې د هغهٔ د جذباتي عشق نه مستفيد کيدل دي . ځکه چې د شاعر پهٔ کلام کښې د عشقيه احساساتو اظهار مقابلتًا زيات دے . چې پکښې د حُسن و عشق ، سوز و ګداز ، هجر و وصال داستانونه پهٔ يو اثرناکه دول

بیان شوي دي - دغه ضمن کښې عبدالقادر خان د حُسن حقیقت په لاندینو الفاظو بیانوي - ے

حُسن یو اثر دے چې په مخکښې د چا وُشي
نهٔ چې کړه وړهٔ بنهٔ لري هغه صاحب جمال دے

او بیا د محبت حقیقت هم داسې ښائي - ے

محبت دې چې د چا پهٔ زړهٔ محکم شهٔ
هم هغه پهٔ حقیقت کښې شاصنم شهٔ

بیا هم د دغه اثر نه او حقیقت نه پس شاعر د خپلې تجربې پهٔ رڼا کښې عشق د کاهمو مشکلاتو ابتدا ګڼلې ده چې وضاحت ئې پهٔ دغه ډول کوي - ے

عشق د کل بلاؤ سر دے، خدائے دې څوک پرې اخته نهٔ کا
هملي د غم ښکر دے، خدائے دې څوک پرې اخته نهٔ کا
لهٔ وطنه سرے ورک کا، و عالم وته ئې سپک کا
دا همه د دهٔ اثر دے، خدائے دې څوک پرې اخته نهٔ کا
سوزنده لکه اتش دے، تر اتشه لا سرکش دے
پهٔ ظاهر کهٔ منوّر دے، خدائے دې څوک پرې اخته نهٔ کا
چې عاشق عبدالقادر شو حال ئې ګل وته ظاهر شو
دا وئیل کا ترې خبر دے، خدائے دې څوک پرې اخته نهٔ کا

د عشق و محبت لار د کوم خیابان روښن نه بلکې دا لار همیشه د اغزو نه ډکه وي - خنډ و خار او منزل ته ډېر مشکلات لري - عن چې د دغې لار اکثر مسافر د المیو ښکار شي - مجنون وو کهٔ فرهاد، آدم خان وو کهٔ

فتح خان، مؤمن وو او کهٔ دے - د خپل منزل د حصول پهٔ ارمان نامراده لاړل - ولې باوجود لهٔ دغه انجامه عشق يوه داسې جذبه ده، يو داسې اور دے چې يو ځل د ذړهٔ پهٔ کور بل شي نو د صورت په خاورو د پټېدلو باوجود د دغهٔ رڼا د صورت لهٔ فانوسه خپل چاپېرچل روښانه او منور کړے وي - هم دغه حقيقت عبدالقادرخان داسې بيان کړے دے - ے

پهٔ گوگل کښې مې ذرهٔ نهٔ دے کهٔ باور کړې

د صورت پهٔ خاورو پټ دے سکور د عشق

او بيا د عشق د کارنامو انجام داسې پهٔ گوته کوي - ے

سر و مال مې شو تالا پهٔ تور د عشق

لا مې نهٔ دے لاړله سره شور د عشق

څو ديار د قامت خيال ئې مستي نهٔ شي

پهٔ نوڅه به نشي هسک نسکور د عشق

د حقيقي عشق منزل ته رسېدل د مجازي عشق پهٔ لاره کيږي - بيا پهٔ نورو الفاظو به دا اووايو چې مجاز د حقيقت ورومبۍ پوړۍ ده - د مجاز پهٔ لار حقيقت ته د رسېدلو د سفر تدريجي نتيجه داوي چې د عشق د لارې دا مسافر څومره څومره حقيقت ته نزدې کيږي دومره دومره لهٔ مجازه بېرته کيږي - مجازي مينه کښې د خواهشاتو غلبه وي - او ددې پهٔ وجه مينه کښې د عاشق ناپختگي وي - د غه اوموالے يا ناپختگي شاعر خپل ځانته پهٔ مخاطبه کښې پهٔ دې رنگ ښودلے دے - ے

لا د عشق او مې لرې عبدالقادره!

چې ديار د جفا زار کوې يا نخولې

ے

اُوم کباب د اور پهٔ تاؤ ژړا فریاد کا
کهٔ د عشق لهٔ اوره اه وکړم، لا خام یم

ے

رقص لهٔ خامئ کاندي د اندردیګ په منځ کښې
پا تو لهٔ صوفي شي هاله رقص چې پخیږي

ولې پهٔ عشقِ حقیقي کښې مینه د کمال انتها ته رسي - او څهٔ د ختا چې دا کمال ته ورسي - عاشق کامل شي - هم د دغه شان کامل عاشق بنیئنه عبدالقادر خان داسې کوي - ے

ونوموز عاشق بلبل دے شورئ د ېر مینه ئې لږه
کهٔ مثال د کامل غواړې وپتنګ ته تند اره کړه

ے

د عشق لهٔ اوره تښتي عاشق نهٔ دے
د خپل ځان پهٔ سولو شي د پتنګ سوبه

پهٔ حقیقي مینه کښې د کاملیت نه پس عاشق پهٔ خپل محبوب کښې فنا شي. دهغهٔ پهٔ خیال او خوب کښې د محبوب نه سوا بل هیڅ نهٔ وي - هر خوا او هر ځین کښې خپل جانان ویني - ساز وي کهٔ رقص، ستوري وي کهٔ سپوږمۍ د سپرلي رنګونه وي کهٔ ونې ، داباسین ساز وي کهٔ د مارغانو نغمې، عاشق داهر څهٔ د خپل حقیقي محبوب مختلفي اداګاني ګڼي - کهٔ جلوت وي او کهٔ خلوت هغه د خپل اشنا همکلام وي - حقیقي مینه یوه مقدسه جذبه ده چې عاشق پهٔ جذب کښې مجذوب او سلوک کښې سالک کړي - عن چې

ے

من تو شدم تو من شدی من تن شدم تو جان شدی
تاکس نگوید بعد ازیں من دیگرم تو دیگری

هغه کېفیت پېدا کړي - عبدالقادرخان د عشق هم دغه کېفیت داسې بیان کړے دے - ے

زۀ او تۀ په محبت کښې نۀ ځائیږي
زۀ او تۀ لۀ مېنځه وو تے یکتا شوے

دا قرب او اتصال او وحدت ضروري نۀ دہ چې جسماني وي - روحاني او قلبي کېفیت هم یو شي - د صورت د پردې په بڼه کېدلو د قرب دا حالت د شاعر دلاندینو شعرونو نه ښۀ واضح کیږي - ے

ے یار لۀ مانه لا وما وته نزدې دے
کۀ ترمیان حجاب پاره پاره د "ما" شوې

ے د "یم" وئیل په طریقت کښې کافري ده
دیم یم په قافیه راوړل پښېمان یم

ے دخودی باد چې وُباسی لۀ سره
دحباب نامه بۀ لاړه شي دریاب شي

د دوئي خبرې مۀ کوه مطربه
په نغمه کښې یو یو وایه نۀ دو دو

جهانزیب نیاز



# مقدمه عبدالقادرخان خټک

چه څوک په مزکه یا په آسمان دی   واړه په حمد د پاک سُبحان دی
نقصان په عوږ وکینې د سامعانو دے   آشیا واړه په حمد د سُبحان دی

پس د خدائے تعالیٰ له حمد جل جلاله او د رسول له درود دے صلی الله علیه وسلم.

اے عزیزه! وپوهیږه چه بهترین د طاعتونو او سر د نعمتونو حق شناسی یعنے اقرار کول په خله چه خدائے یو دے، شریک ئے نشته او محمد رسول (صلی الله علیه وسلم) د دهٔ دے. او تصدیق یعنے دلوره دزړهٔ دے. بیت ؎

قربان دِ ترنامه شم محمده پیغمبره
چه ئے ستا محبت نهٔ وی د هغو چار دهٔ ابتره
ځار دِ تر صدّیق شم صدقه دِ تر عمرؓ شم
فدا شم تر عثمانؓ، بلهاری شم تر حیدرہؓ

د واړو اصحابو دوستی دهٔ د رسول دوستی. د رسول دوستی د خدائے دوستی دهٔ. هر چه د خدائے دوستان دی. په دواړه جهانه په امان دی. پس له ایمانه تر واړه طاعتونو بهتر نمونځ دے. بویه چه په بنهٔ وخت ئے وکړے. نمونځ په ترتیب ادا کوه. سبک کوم؟ چه نمونځ ئے سبک وی. یعنے

رکوع، سجود نهٔ بیلوی - پهٔ مسجد نهٔ حاضرېږی - اَمّا امامتی مهٔ کوه - او مؤذنی کوه درون‌بار دے د مخلصانو کار دے - پس سعي په ښهٔ خصلت کوه - دانسان او دحیوان تفاوت په خوئ دے - خوږونه کم آزاری دہ - څوتو اینږے په لاس، پهٔ ژبه څوک آزار مهٔ کړه - ؎

| | |
|---|---|
| دچا مهٔ اَخله آزار عبدالقادره | تر دا نشته دے بدکار عبدالقادره |
| هر چه ویره دمظلوم د آه نهٔ کا | عاقبت شی هغه خوار عبدالقادره |
| چه لاس نهٔ نیسی له ظلمه وراندِ ورستو | په ظالم شی گرفتار عبدالقادره |
| څوک چه خوری په ظلم مال دیتیمانو | دکوی کیږه په نار عبدالقادره |

هر چاته په ښهٔ نظر کوره - هرچه په ځان نهٔ پسندے په بل مهٔ پسنده، که ښهٔ کړے ښهٔ به مومے - که بد کړے بد - دنورو بار وُړه - خپل بار په چا مهٔ وره - له چاسوال مهٔ کوه - د بل مهٔ رده وَه چه مهٔ ښکنځهٔ شے چه ونهٔ ښکنځے ؎

خپل استاد ے خدائے قبر منوّر کا
همیشه به ئے داپند وایه وماته

په مقراض که دِ څوک دواړه شونډے پریکا
جګی جګی ښکنځل مهٔ کوه وَچاته

دیر ورکړه لږ ګنړه - لږ ورکړه په عذر زیات کړه - لږ خوره، دیر بخوه - دچا مهٔ خوره - په نوره نورَوه - په هلکانو رحمت کوه - دپیرانو حُرمت کوه - د عالمانو عزت کوه - دفقیرانو خدمت کوه - په هر کار کینے، په تلهٔ په ناسته، په گفتار، په خوراک تقدیم دمشر کړه، مشر ورور لکه پلار گنړه دپلار آشنایان لکه ترونه - دچا عیبونه مهٔ شماره - پرده پوش وُسه - رباعی ؎

اے چه عیبونه دبل اکثر وینے
خپل ځان تر نورو خلقو بهتر وینے

سر د همه وُ عیبونو دا دے
چه د بل عیب د ځان هنر وینے

غیبت له چا مهٔ کوه - غیبت کوئ منع کوه - په ځان بدګمان اوسه - په بل نیک ګمان - دروغ مه وایه، سړے پرے سپک شي - وعده خلاف او سوګند خور مهٔ شه - بے اعتباره به شے - چغلي د چا مهٔ کوه - د چغل خوړ غلیم اوسه - د بل لږ احسان ډیر ګڼړه، خپل ډیر لږ - ډیر آوره، لږ وایه ښهٔ وایه - چه څوک دِ وپوښتي هاله وایه - د لږ ے نیکئ د بل پرے تلافي کړه - په ډیر بد لږ مکافات، بلکه عفوه بهتر تر انتقام ده - خپله نیکي د بل بدي مهٔ یادوه - ورکړه په منت مهٔ حبطه کوه - سخاوت په مثال څه دے، میوه داره شجر - چه مِنّت ورځنه مل کړے ویخ ئے سکڼړی په آره - کامل سخي هغه دے چه تر ورکوُنے په غوښتو مئن وی - چه څوک دِ وبولي ورشه - ګڼه قرار په وقار کښے ناست وُسه - د علماء مجلس لازم ګڼړه - ډیر علم لږ عمل کوه - خو د علم په ډیر عمل کړه کا ے

هر عمل بے علمه څهٔ دے ، د خدائے قهر د خدائے هیځ
لږ عمل له علم ډیر دے ، ډیر عمل بے علمه هیځ

د مشائخ په دیدن ور درومه - ناستے ورسره کوه په ادب - د اولیاء په کار انکار مهٔ کړه - په نعمت شاکر وُسه - په محنت صابر - نیک وید واړه له خدایه ګڼړه - موړ په قناعت شه - قناعت ګنج دے. چه دے نهٔ فاني کیږی - راضي په قسمت شه - چه همیشه خوش وسے ے

پیسے چه حل ئے واړه اشکال وُسه
په دواړه کوته خوم خوشحال وُسه

دا نصیحت ئے راته همیش وایه
چه خوش له خدایا په هر احوال وُسه

حرص د دنیا مهٔ کوه - حرص قحطي ده چه نهٔ تیریږی - حسد له چاسره مهٔ کوه - نقص دوزخ دے - حسد په زړهٔ کښے د بے حسدو اور دے - ترے بویه حذر - بے خود وی، چه له مقبول سره

دشمنی کا - هغه سړے دِ په شمار د وُرور دے . کبر مۀ کوه چه خوار نۀ شے - تواضع کوه چه عزیز شے - متکبر مۀ شه - متواضع وُسه - آزار مۀ اخله - د هر چا نافع اُوسه - سر دهمه وُ پند ونو دا دے له خپله خدایا همیشه خاشع وُسه - حلیم شه زخمونه چه درونه شے - ډیرے مسخرے مۀ کوه - بے وقار به شے - ددنیا محبت مۀ کوه - حُب سر دبدیو دے - سخاوت کوه چه د هر چا محبوب شے - بُخل مۀ کوه چه د عالم مبغوض نۀ شے - غلیم دغلیمانو هم ستا نفس دے - له شرے ایمن مۀ شه - له شیطان ځنے احتیاط کوه - له شیطانه اُنس مۀ کوه یعنے اُنس له بدانو - په دښمن باور مۀ کوه، په دوستانو بدگمانی - چه رُو برو دِ صفت کا هغه بدخواه وُگڼه - خود نمائے خودستائے مه شه - آزمائیلے بیامۀ آزمیه - په ناآزمائیلی کار مۀ سپاره - له حکومت لرے وُسه ، اګرچه که یوساعت وی - په هر کار کښے مصلحت کره - احمق کوم ؟ چه ځان هوښیار ګڼړی ؎

سړے که هر څو له عقله پُر وی

چه مشورت نۀ کا په ځان مغرور وی

هم دغه عقل دده کم شی

ځنے به پریوزی درست په چورچور وی

کار ونه په خدائے تعالے وسپاره - ډیر مۀ خانده - کشاده روی او مُتبسم وُسه - چه زړۀ دِ سخت نۀ شی او هر څوک دریاندے میئن شی - همیش محزون وُسه - دُنیا کلبه دَ احزان ده - غافل به پکښے الله وهلین وی - خوشحالی علامت د حماقت ده - له ګناهه بیرته وسه چه زړۀ دِ تور نۀ شی توروالے د زړۀ نښانی د کفر ده - د دُنیا مینه سر د وارو بدلو ده - ددُنیا دار و ناستے زهر قاتل وُگڼه. خپل لږ ډیر ګڼړه - دبل ډیر لږ - په علم دین کښے تر ځان بهتر کوره - په دنیا په دولت کښے تر ځان کهتر - راز وچاته مۀ وایه - دچا راز دار مۀ شه - چرے راز به ئے فاش کړے - د راز ساتل ګران دی - نیک خواه دخلقو وُسه - که په لاس وی که په ژبه ، که په زړۀ - بهتر دسړیو نافع دے - بد مُضر - مشغول دالله تعالے په ذکر وُسه - دخدائے عافیت غواړه - مرګ ډیر یاد وه - ددنیا محنت به

درباندے آسان شی ۔ دآخرت طالب به شے ۔ مړهٔ عزیزان دوستان مهٔ هیروه ۔ دمړیو چهره تصور کړه ۔ چه ژوندی څهٔ رنګ وو ۔ اوس په قبرونو کښے څهٔ رنګ پراتهٔ دی ۔ قرآن دائم لوله چه دزړهٔ پسین والے دقرآن په تلاوت اود مرګ په یادوُل کیږی۔ تنهائی عادت کړه ۔ قرآن انیس لره چه په قبر کښے دِ مونس وی ، په قیامت شفیع ، په جنت کښے رفیق و هرصبا یٰسٓ لوله چه ځنکدن درباندے آسان شی ۔ هر نماز پیشین اِنّا فَتَحْنَا لوله چه کشائش ددین ددُنیا دکارونو وشی۔ هر نماز دیګر سوره عَمَّ لوله چه ددنیا محنت درباندے آسان شی ۔ هر نماز شام اِذَا وقعَة لوله چه نهٔ خواربے په دواړه جهانه آسوده وے ۔ هر نماز خفتن تَبَارَکَ الَّذِیْ لوله چه له عذابه دقبر خلاص شے۔ خیرالکلام ما قَلّ وَدَلّ ۔ وَالسَّلام مَعَ الْاِکْرام ۔

—— .. ——



## (١)

ساقي پاڅه پياله راکړه پاڼړے بید کا — د بهار د راتلو باغ ونته نوید کا
ستا په ميو کښې نشه د يکرنګۍ ده — چه تر فهمه مے يکرنګ سيه سفيد کا
د رقيب خاطر به ويلی لکه يخ شی — که يار مخ راته ښکاره لکه خورشيد کا
سيه چشمو څخه بوئ نيس د وفا نشته — له دے بابه به څوک څه ورته اُميد کا
چه په عشق سره ژوندی وی هغه نه مری — خدائے توانيږی که زما عمر جاويد کا
زړه ئے درست له مانه يو وړلائے ګوره — چه لا څو سِحر د مونه مکر وشيد کا

دا ځل دی عبد القادر ځنی سود مند شو
چه په بيا په بناګسته ؤ اعتميد کا

## (٢)

دا خوبونه که دانا سړے اختيار کا — په دُنيا په دين به جوړ پرے کاروبار کا
عبادت د حق په صدق په اخلاص کا — تل له خپله نفسه جنګ کوی کارزار کا
په فقراؤ سخاوت کا بے منته — په حاجت کښې استغنا له دنيادار کا
و دوستانو ته تل پند نصيحت وائی — له دُښمن سره په حِلم زيست روزګار کا
له تمامو خلقو زيست په انصاف کاندی — په ربښتيا ويل حاصل خپل اعتبار کا
شفقت، مهربانی کا په خوارانو — د بزرګانو په خدمت حاصل وقار کا
جاهلانو سره زيست په خاموشئ کا — که هر څو په بد ويل ئے زړه آزار کا

هميشه عبد القادر غوښتِ آزار وړی
چه نه څوک آزاروی نه له چا زار کا

# (۳)

چه ئې ستا خوږې خبرې ذرۀ صاف نۀ کا — د طهور شراب هغو وته لاف نۀ کا
خدائے یې څپله ستا صفت دے بیان کړے — نشته شے چه مدحه ستا د اوصاف نۀ کا
چه ئې ستا په شریعت قدم ثابت کړۀ — له صراطه دِ هغه سرے خاف نۀ کا
چه خلاف دِ له سُنت کا ځائے ئې اُور دے — کۀ له فرض او له واجبو خلاف نۀ کا
خدائے به څپل ګنهګار عفوه ستا په روئ کا — وے ستا ګنهګاران به معاف ستۀ کا

په طواف ئې مفتخر عبدالقادر کړه
خوارشی څوک چه تر روضه ئې طواف نۀ کا

# (۴)

څوک چه مینه په دنیا لا په عقبیٰ کا — نۀ پوهیږی سراسر واره خطا کا
کۀ د وصل له لذته ئې خبر شی — د بهشت و نعمتو ته به شا کا
د زاهد حیله د حور او د قصور ده — عاشقان ئې و دیدن ته تمنّا کا
چه اعلیٰ وی په اعلیٰ به ئې نظر وی — چه ادنیٰ وی همګی چارے ادنیٰ کا
د خزان ډوک ئې لیدلے دے په سترګو — چه بلبله په ګلزار راشی غوغا کا
چه ئې شا په شا په کټ کښے ناستے نۀ شی — دا فلک ئې په هیواد جُله جُدا کا
چه صبا به له مجلسه جُدا کیږی — شمع ځکه درسته شپه د سوز ژړا کا
چه د وصل په دولت وی سره جمع — زمانه به ئې جدا په واویلا کا

هر چه یار کا هم هغه دے دۀ غلیم شی
ځکۀ به نور عبدالقادر یاری له چا کا

## (۵)

خدائے به زر پریشان یاران سره یوځائے کا — بد خواهان به سر وهی هم به هائے هائے کا
په جهان کښے نوے نوے بازی کیږی — لا[۱] یوه تمامه نه، بله برپائے کا
د بهار د ګلو ګشت کوے نهٔ شم — خپلے وښکے راته مزکه ګل ولائے کا
تل به وار د رقیب جوړ رابانډِ نهٔ وی — زمونږ وار به هم پرے سازشی که ئے خدائے کا
دا دنیا راته ښکاره قمار خانه شوه — هر څو ډیر که ووکټی آخر ئے بائے کا
بندګی[۲] په پیرئ نهٔ ده په ښهٔ خوئ ده — بوم به کله په وزرو ځان همائے کا

زخمی شوے ئے هر لوری عبدالقادره!
څوک اوه اوه ځنی آه آه ځنی وائے کا

## (۶)

کله هر څو ورباندِ غاؤ رقیب غماز کا — عاشق کله غوږ دیو په آواز کا
په[۳] جهان چه بد مزه اوګنده بوئ ده — زمانه ئے ململ پوښه سکه پیاز کا
نازنه مخ بویه نازک، لطیف تر ګله — هر مخ کله هومره مخ لری چه ناز کا
هر چه نهٔ نیسی نظر له ښکلیه مخه — بویه دا چه ځان غمونو وته ساز کا
باد را والوت مخالف ناخدائے بیهوش شو — ګوره سر به په کوم لوری دا جهاز کا
چه ئے نهٔ د میوے سود نهٔ ئے د سیوری — دا فلک ئے لکه سروه سرفراز کا

له بے نیازه بے نیازی عبدالقادره!
همیش غواړه چه له غیرو دِ بے نیاز کا

---

۱ لا یوه تمامه نهٔ وی بله برپائے کا } خ
۲ بزرګی په پیرئ ....... } خ
۳ په جهان کښے چه بدخوی وګنده بوی وی (خ)

**(۷)**

هر کوره ډېره نادانی بوره بلبل کا | چه خزان وره لیے شته مینه په گل کا
داچراغ به بل تر کومه وی په باد کښے | یوه ورځ به ئے صرصر دفنا گل کا
په صبائے په زشتئ بدل ښائست شی | شب چراغ چه په شپه هومره تجمل کا
خفی شرک لکه جلی وره خرگند یږی | عارفان کله نظر په جز په کل کا
په شبنم سره دگل غوټی غوړیږی | دبخیل غوټه لاسخته نم دمل کا
نشدارچیانو به ئے شرح د مخ وکړه | تحیر ورته آواز د لا تقل کا

ستاقلم عبدالقادره مشک افشان شو
چه ډیر ډیر صفت د زلفو د کاکل کا

**(۸)**

په خزان کښے که نظر په گلو وکا | ښائسته به پخپل حسن زړه ښه نه کا
دجهان ورکول تل په عاریت دی | عاشقان به تعلق پرے بوره ئے څه کا
د فلک آسیا په ړود زما د ستر گو | چه دیار په فراق دروی گرځیده کا
یو ساعت ئے خوشحالی اندوه ئے عمر | آشنائی دِ هیچوک نه کاندی که ښه کا
چه په اصل بوټے تریخ وی خوږ به نه شی | داوبو په ځائے که توئے شهد او ره کا
پل ئے ځکه په جهان کښے موندہ نه شی | عاشق تله دیار په لوری په لیمه کا
بوئیں د مشکو د عنبر په جهان خور شی | مشاطه ئے چه خواره د سر ویښته کا

له غمونو ځکه خلاص عبدالقادر شو
چه پخپله بخره خوښ شو حرص نه کا

---

۱ د دُنیا ورکول کل په عاریت دی عاقلان به تعلق ورپوره څه کا (خ)

## (۹)

کهٔ د خوبانو په دُعا فرښتې آمین کا — زړ په جمع پریشان رب العالمین کا
د وِصال په دولت ناسته غافل مهٔ شه — جدائی وٙ واصلانو ته کمین کا
تړق به وُچوی له غمونو که نومید شی — د ښادیو په اُمید ښادی غمګین کا
د خندا طالبه! تل په ورشه ژاړه — چه وُژاړی خندا هسله یاسمین کا
د قصاب له چړے خوف د لاغر نشته — په دَمه کښے تل پښتنه د سمین کا
قُوت نو هومره چه قوّت ځنی حاصل شی — که په ډوک وی داوړ بشوکهٔ غنمین کا
جهان څهٔ چه جهانونه به ګړ وړ شی — کهٔ د تللیو حال ښکاره ورته زمین کا

د خوبزرهٔ داړو په دا عبدالقادر کا
چه د خوبرو په دعا فرښتے آمین کا

## (۱۰)

عشق د کُل بلاؤ سر دے خدائے دِ ثوک پرے اخته نهٔ کا — همګی د غم ښکر دے خدائے دِ ثوک پرے اخته نهٔ کا
له وطنه سرے ورک کا وعالم وته ئے سپک کا — داهمه د دهٔ اثر دے خدائے دِ ثوک پرے اخته نهٔ کا
پائمال[1] مال ومنال کا بد ئے رنګ بد ئے احوال کا — خوار کا تا کهٔ د توانګر دے خدائے دِ ثوک پرے اخته نهٔ کا
نهٔ سړے[2] ترے نه رغیږی چه داړو کا لاخوږیږی — تر ناسوړ ئے زخم بد تر دے خدائے دِ ثوک پرے اخته نهٔ کا
هم تیرهٔ دے هم تاریک دے تروینتهٔ نه لا باریک دے — ګویا جسر د سقر دے خدائے دِ ثوک پرے اخته نهٔ کا
سوزنده لکه آتش دے تر آتشه لا سرکش دے — په ظاهر که منور دے خدائے دِ ثوک پرے اخته نهٔ کا

چه عاشق عبدالقادر شو حال ئے کُل وته ظاهر شو
دا وئیل کا، ترے خبر دے خدائے دِ ثوک پرے اخته نهٔ کا

---

[1] پائمال ئے مال منال کا ...... [2] نهٔ مری نهٔ ترے رغیږی ... } خ

(۱۱)

هر عالم چه تن پرست شي کامراني کا
دے به څرنګه د دین نګهباني کا

چه له خدایا ویره کا عالم هغه دے
که د تخت دپاسه ناست وي سلطاني کا

موافق چه ئې عمل له علمه نه وي
تر جاهل به عالم زیاته پښیماني کا

د عالم فساد، فساد د درست عالم دے
شیطان کله هومره ډیره ویراني کا

د هغه عالم صحبت لکه دارو دے
چه پیدا ورکښے خوئې نه انساني کا

اول علم بیا عمل دریم اخلاص دے
دا دره خویه مرد عالم ربّاني کا

چه بے علمه شیخي کا مریدان نیسي
په مرید کاره ورته شیطاني کا

نمونځ روژه به ئې ځائے بانديٰ تاوان شي
چه په حکم ئې د نفس نفساني کا

بل ته واي دُنیا پرېږده بې وفا ده
دے ئې سعي شپه او ورځ په وداني کا

نصیحت کا چه غیبت تر زنا سخت دے
په ویئل د غیبتو ځان زاني کا

په عمل د ګیلان سپي ورځني ښه دي
په خُله ځان عبدالقادر ګیلاني کا

(۱۲)

دلربا که راښکاره ښکلے جمال کا
له خاطره ے به محوه غیر خیال کا

کفایت په عاشقۍ کښے نه ځائیږي
محبت بنده زاده د بادشاه سیال کا

د وصال په وخت خبره لوئے حجاب شي
عشق عاشق ګنګے ګویا ګنګے لال کا

په بورجل ئې د کال غم راباندې تېر شو
انتظار یوه ګړۍ په سري کال کا

که ظاهر له نوره خلقه مشغولا کړم
زړه ئې تل د یار له غمه اشتغال کا

سپین ویښته دِ بدنامئ په وسمه تور کا — چه آرزو د صفا روئیو د وصال کا
زړه او یار په صورت دوه په معنی یو یو — ثوک چه دے خوشحالوی ما به خوشحال کا
ز ملک تخت آسمان ئے تاج ستوری گوهر شی — چه په سر ئے دا د مینے همائے بال کا
د دوران له انقلابه لا بقا شی — اعتماد به دا نا څه په دا اقبال کا
دگوره مړه به په ژړا په ناره وکړه شی
که ښکاره عبدالقادر ورته احوال کا

## (۱۳)

نشته په جهان کښے ثوک په دا قد و بالا — څه عجیب صورت دے تبارک و تعالی
هیڅ سودا و نشوه ځنی تش لاسو ته لاړم — ډیر دی په دا ښهر کښے لائق د خریدلا
کله به چیل یار وته بیلے د نعم وکړم — که تل به ئے جواب کوو په سوال کښے لم یلا
هر چه دا خواهش کا چه په کرم په ښکلیو مینه — بویه چه یوځل د ناموس مینه کا تالا
ډیر په شیوه دروے خدائے دِ ژغوره له نظره — زیات ترنور وکښلیو خیال دماغ دے دِ تالا
واره ښائسته که لکه گل دیوه باغ دی — لا زما دلبره پکښے شان لری والا

داخه ویل نه دی چه عبدالقادر ئے وائی
پیئلی دے د نظم په تار دی لولو لالا

## (۱۴)

چه دنیا ورته ښکاره شوه بې وفا — و دنیا ته به مخ نهٔ کا بې قفا
په اصحابو به پریوانه وه بې حده — په کفارو به وه ځوزکه ښه وه دا
چه یې مخ وی د دنیا و تولو ل ته — خپل پردی ورځنی تل وی شا پېشا
دښمنی یې دَه بهتره تر یاری سې — په یاری کښې یار خراب کاندی یوځا
د واره لاس یې د خپل یار په وینو سره دی — نادانانو ته ښکاریږی په حنا
کهٔ له چاسره یاری کاندی تر سره — له غه پسه بانړ ته هم شه شیدا
د سلیمان تخت چه په باد تلهٔ آخر بادشه — پهٔ قارون[1] په ژوندون وشوه تماشا
په سکندر او په دارا یې وکړې چارې — په شداد او په نمرود یې وکړې لا
د هغو[2] چه طمع نهٔ وه چه به خوار شو — په دنیا کښې هسې هست وو بې پروا
په ژوندونی خوار و زار حیران پرېشان شول — امته دار دی د تکیې سبا بېګا
چه له کبره یې سم نهٔ ویل و چا ته — اوس کړې خبرې اروی له هرچا
چه ویښتو یې تاب ورکړې وو سنبل ته — د سنبلو په دود ځایې یې شهٔ صحرا
چه به خوا پخوا پراته وو له مهرویو — اوس پراته له تورو خاورو خوا پخوا

حال یې درست عبدالقادر وته ښکاره شو
ځکه هسې مذمت کا له دنیا

---

۱ د قارون ....

۲ د هغو چه طمع نهٔ وه چه د خوار شو
په دنیا کښې هسې مست وو بې پروا } خ

# (۱۵)

چه پخپله خلهٔ بیان دخپل هنر کا
دخپشے په دود هر گوهر به چر کا

خپل گوهر لکه صدف ساتلے بویه
زمانه کهٔ ئے پاره پاره ځیگر کا

امتحان دمرد نامرد په حادثه شی
اوړ نیکی بدی ظاهره د اگر کا

عاقبت به ویےنو ژاړی چه خاندی
دبیبنے قلقل بنادمنو ته خبر کا:

دُون همت لکه خس بیا پریوځی په زمکه
کهٔ گرد باد ئے ددولت په فلک بر کا

چه فنا خپله هستی کا په سرهٔ اوړ کښے
شمع هله نوُر له نوُره منوّر کا

چه منّت ورسره مل وی تر دامن دے
کهٔ به شونډے دحیات په اوبو تر کا

دبوریا ښخښے په تن دمسکینانو
لا بناښت تر منقش جامو د زر کا.

په دے بزم کښے چه مئے دمُراد وښبنی
په آخر د ناکامئ ئے پیاله وَر کا

دډُنیا خوښی کهٔ واړه ورته کیږدے
درو غرژن دی کهٔ پرے غم دآشنا ور کا

چه په وخت دتلو راتلو کا چیغارونه
دهوادیاران رایاد ذاړ ے اکثر کا

دغمژنو په کوځه مهٔ ځه خوشحاله
صاف ساعت به دِ دعیش مُکدر کا

تهٔ لاهسے یاد ییے عبدالقادره!
دَم په دَم دعمر باد غونډِ گزر کا

---

له دچښرے په دود هر گوره بده چر کا (غ)

## (۱۶)

طول اَمل چه په دُنیا عیش و انند کا — په اهار کښې داوړو په طمع بند کا

لړ راحت به ئې په ډېر محنت بدل شي — چه مرګ مخ ورته دنس په دود څرګند کا

کبرژن په قهقه خاندي لېشادِ وي — په معنیٰ کښې پخپل ځان پورې رېشخند کا

څو دعشق په تیغ واړهٔ شم عزیزېږم — قیمت زیات واخلي کښې چه ئې بند بند کا

نیک خواهان دِ پند ویلو صرفه نهٔ کا — نیک بختان بو یه چه غوږ د دوی په پند کا

رخصت مهٔ اخله په غلا راځني دِ ومه

کله څوک د ځان ورژلو کار پسند کا

## (۱۷)

چه ئې وَلیده بشر ستا — کمترین غلام شو نمر ستا

ګُل له شرمه خولې پرېږدي — چه په مخ شي برابر ستا

د بادشاه په بادشاهي ئې — خندا کاندي قلندر ستا

ګُل ، شبنم ، صبا ، بلبلې — ثنا وائي هر سحر ستا

تر عنبرو په ما ښې دي — د پلهٔ خاوړې سمنبر ستا

خود له خوده ښائسته ئې — حاجت نشته د زیور ستا

د هر شي تسبیح به اَروې — که غوږونه نهٔ دي کر ستا

یار په هر لوري جلوه کا — خو بینا نهٔ دي بصر ستا

میاشت او وریځ د مخ نقاب کړه — چه په مخ شوه برابر ستا

تل دا خواست عبدالقادر کا

چه کهٔ خاوړې شي د دَر ستا

## (۱۸)

کښلي مخ ئې میاشت خجله کړه نمر هم لا
قد ئې سروه کړه سرکوزه عرعر هم لا

سرو لبانو ئې قیمت د لعلو کم کړهٔ
سپینو غاښو ئې بې آب کړ گوهر هم لا

چه تنها ئې همیشه په سر اخلم
د عشق بار مې گردون خم کړ کمر هم لا

نهٔ یوا ځې په صورت جدا ئې خوار کړم
په دا اور مې نه سوزي ځیگر هم لا

چه نکهت د یار د زلفو نسیم راوړ
مشک خوشبوي په هغه بوي شول عنبر هم لا

په نمانځه کښې د یار وروځې را په یاد شوې
د زړهٔ آه لا ے محراب وسوځهٔ منبر هم لا

څو د زړهٔ عبد القادر سره جفا کړه
ستا جفا به وړي په سر په بصر هم لا

## (۱۹)

کهٔ گذر د یار په کوڅې وکړې صبا
ووایه زمونږ پیغام په دلربا

څو قطرې زمونږ په یاد په مزکه توئې کا
چه په بزم د عشرت اخلي صهبا

ستا د زلفو بوئي نسیم په چمن راوړ
له مستئ شو د غنچو قمیص قبا

په ژړا مې د بڼو خارونه توئې شول
په لیمهٔ مې قدم بږده بې محابا

لکه گل په جوئي تر نورو گلو ښهٔ شي
ښهٔ خصلت زیاتوي حسن د خوبا

نصیحت په عاشقانو اثر نهٔ کا
نهٔ د پیر نهٔ د استاد نهٔ د بابا

تل تر تله به ژوندي وي لکه خضر
کهٔ په خلهٔ ورکا دلبر لام وبا

چه مې يار له غېږې ځي د مرګ ساعت وي دريغه مه وې د وصال د شپې صبا
تر سايه ئې د جنت خوښي ئې مومم د خپل يار قامت وماته شو طوبیٰ
له دې ملکه په عزت واته بهتر دی ساکنان ئې حرمت نه کا د غربا

که رښتينې حب لرې عبدالقادره!
بې ربياره به دړ درومي محبوبا

# (۲۰)

په تهمت کښې که خپل يار موندلے ما د عالم تهمت په سر منلے ما
ډېر به نه وو هجران کړان که ئې له غمه په وصال کښې هميشه ژړلے ما
ما به تل لکه بورا په ګل سينه مښه که په کښې د وفا بوئين موندلے ما
چه بې سواله ورکړه کا منت په ځائې بدوي سخاوت دے د عفو پسند ے ما
حريص هسکه هسې دړ په در جاروځي چه دې دے له خپله دړ رټلے ما

ابدي ژوندون حاصل عبدالقادر کړه
د غمزے په تيغ چه دے وژلے ما

* * *

# (۲۱)

داُدعا مے مُستجابه کړے مجیب — چه وصال مے بیا روزي شي له جیبَ
ستا له فکره خالي نهٔ یم، خالي مهٔ شم — اے ترفکر زما زړهٔ وته قریبَ
دعشق لاس دلیونتوب په زوراخست شي — په قوّت دعقل وَړ نهٔ شي لبیبَ
لاس په لاس دمرادمے ونوړ و ور کا — چه په ما بانِدِ واړ راشي واٸے شیبَ
هم ترما پورے سرکوزے هم یار رَدکړے — مخ دِتوړ په دواړه لوري شهٔ رقیبَ
ستا په قدر ناآشنا کله پوهیږي — دحُرمت اُمید له چا کوے غریبَ
په قسمت ئے دِتنګ داوړ لمبے کړے — تهٔ ورځه په ګلو ګرځه عندلیبَ
بے نصیبه به دِهیڅ په لاس کښینو زي — بیهوده څهٔ له حرص کړے بے نصیبه
چه په ستر ګوئے پردے دحسد پریوځي — امتیاز دیوسُف نهٔ کاندي له ذیٸبَ
چه ئے کاندي وهر چاسته بدبنکاریږي — دخُوانیٸ کاړ ونه نهٔ بناٸي له شیبَ

دبدذات سره یاري عبدالقادره!
په معنیٰ کښے دښمني ده له نجیبَ

# (۲۲)

بیا په مخ وُښو دِلربا ئے نقاب — اِفتَح یا مُفتِّحِ الاَبواب
ګل شګفته شو په هر لور دبهار — اَلصَّبُوحُ اَلصَّبُوحُ یا اَحبَاب
ریز ساقي مئے باقي درجام — رابه بانګ دَف ونے چنګ ورباب
چه تاقدم په خاوړ وکښیښو فلک — قَالَ یالَیتَ رَبِّ کُنتُ تراب
چه جُدا شوے مئین راشي بکُښ — سَبّبِي یا مُسَبّبَ الاَسبَاب
اوړ مے قبول دے جدائي دِ نهٔ وي — هجر محبُوب راسٌ کُلِّ عذَاب
ذَلَّ من طَمِعَ، عَزَّ من قَنِعَ — ځکه قانع شده اُولُو الالبَاب

بے خدایا ویرہ شرک خفی است　　　وَهُوَ الْقَاهِرُ وَهُوَ الْوَهَّابْ
ربہ عمل مے دے همه د بدئی　　　تُبْ عَلَیَّ فَاِنَّكَ التَّوَّابْ
تۂ رحیمی و کریمی و غفور　　　زۂ کۂ هر څو نۂ څم براہِ صواب

عبدالقادر چہ دا غزل کرۂ بیان
څوک بہ ئے کاندی پہ پښتو کښے جواب؟

## (۲۳)

که هر څو پہ ورځ و شپہ کاندی طلب　　　ور بہ نۂ شی ترمطلوبہ بے ادب
تر بے سینۂ پہ قرآن کۂ نظر وکړے　　　دا دب صفت دِ کړے پکښے رَب
ادب څۂ دے، نیک وبد کښل لہ خدایہ　　　مستقیم پہ شریعت پہ روز و شب
سببونہ حجابونہ شول د وړاندے　　　مُسَبَّب نشی لیدۂ پہ دا سبب
چہ لہ شنے ونے نہ سرے لمبے پیدا کا　　　کہ لہ سر و لمبو بهار کا څۂ عجب
د وارۂ لب بہ ئے هغه عاشقان ښکل کا　　　چہ لہ یارۂ سرو مال نۂ لری لب
ساقی[۲] څۂ خو ترینا کے او بۂ دا کړہ　　　لوپے غمونو کړے لما د زړۂ طرب
چہ اثر د بیخودی ترے پیدا کیږی　　　تل برجنه وُسه وُنه د عنب
لہ خوږو[۳] مے دوارہ شونډے صبا نښتے　　　چہ مے وُ زبیښل پہ خوب کښے دیار لب

زړۂ پیالہ عبدالقادرہ ویتے مۂ کړہ
د آشنا پہ یاد ئے نوشه لبالب

---

[۱] گلزار - (خ)

(خ) { [۲] ساقی څۂ خو طربنا کہ پیالہ را کا
[۳] لہ خوږو مے جُملہ دوارہ شونډے نښتے ــ چہ مے وښکل پہ خوب کښے دیار لب }

## (۲۴)

که خبر شې د رندانو له مشربه
نور به تېر شې له ځلوړ وارو مذهبه

ځوک دِ طمع د ادب له مانه نهٔ کا
څهٔ غرض د لېونیو له ادبه

دا همه سبب زما د بدبختئ دے
چه دا هسې آزرده شې بې سببه

چه تا رخهٔ ویل دِ هومره ډېر خوارهٔ دی
د خوږو به دِ څهٔ خوږ وی شکر لبه

په هجران کښې ناقرار په وصال سوزی
د عاشق دِ څهٔ نصیب کړ زما ربه

چه لقب ئې د سړی رابانده[1] کښېښو
زیارت گاه شوم د فوښتو[2] له دے لقبه

د نمر وصل موندهٔ ستا په دلالت شی
لا به کله طلوع کړے زما کوکبه

د رندهٔ هله څهٔ حاصل کاندی چه کړځی
یو زمان قرار مهٔ کړه له طلبه

یو ساعت د آشنا غم عبدالقادره!
بهتر دے د تمام عمر له طربه

## (۲۵)

حاصل کړه مقصد ونه د دُنیا له هره بابه
آخر به په ارمان ورځی ځې سینه کبابه

دا خرابه هیڅ امیر وزیر ودانه نهٔ کړه
سړی د هغې ودانئ کړه خانه خرابه

د ډېرو تږو[3] وچاودے زړهٔ په ډېر طلب کښې
تنده ماته نشوه د هیچا له دے شرابه

د سرو لبنو دِ ښین شو ښین دِ نشو د زړهٔ توری
نمر په تندی راغلی، ته لاویښ نهٔ ئې له خوابه

---

[1] چه لقب ئې د خپل سړی رابانده کښېښو۔
[2] ولایت۔
[3] وچاودهٔ زاره د ډېرو تږو په طلب کښې

خ

کاږي دي نهٔ زړونه چه نرمي ورځنه نهٔ وي ۔ ګيتي دي نهٔ سترګے چه بے نمه وي بے آب

حرام دي کهٔ حلال دي خو د بويه چه اموال دي ۔ هيڅ ويره دِ نهٔ شي له عذابه له حِساب

مست د دُنيا کله بے اَجله هوښيا ريږي ۔ مستي د دُنيا بده ده تر بنګ و تر شراب

خاورے ځيل وجود کړه څو لا نهٔ ئے خاورے شوے ۔ زد کړه که دِ نهٔ زده دا خصلت د بوتراب

پروت عبد القادر دے د غفلت په توره شپه کښے

کله به راخيژے د توفيق بنګلي آفتاب

# (۲۶)

درسته شپه ژړا فرياد سترګے بے خوب ۔ وارهٔ دا کاروبه ستا دي مُنتوب

چه ئے نو له سترګو نهٔ ځي زړهٔ ئے چوي ۔ مهٔ کړه خدائے تعالیٰ زخمي زخم بے زهُوب

ډک خُمونه تشوم د عشق له ميو ۔ لا تشنه سينه ئے هيڅ نهٔ ده خړوب

ومنصور ته د دار سر بو رجل ديار شهٔ ۔ عاشقان دِ نهٔ کا دار د دار له چوب

چه د عشق له اوره تيښتي عاشق نهٔ دے ۔ د ځيل ځان په سولو شي د پتنګ سوب

نا زپرور دِ خبردار له قدره نهٔ دے ۔ خو هم ما لره راځه د عشق آشوب

چه له درده ځان ساتي دو ژته زغلي

له هغو عبد القادر توب توب

---

۱ ...... چه نرمي ورځني نشته

۲ هيڅ دِ ويره نشي له حساب لعذاب ۔ خ

۳ داصمه کاروبه ستا دي مُن توب

## (۲۷)

هیڅ له کبره نظر نهٔ کاندی وخوارتَ ... بنا لُسته په معنی زړه دی ومی زر دارتَ

نوش روځی له خوشخویئ سره زیب کا ... وُوایه هغه دلبر دِل آزارتَ

خط دِ خپلې پریشانئ ئې پکښې لولم ... چه نظرو کرم دکښلیو وعذارتَ

په اُمیدئ دوصال لکه خلیل ځم ... په خندا په خوشحالئ په هوس نارتَ

ما په خوب کښې میاشت لیدهٔ په کړیوانهٔ کښې ... مُعبّر وې یاره په دریشتی کنارتَ

چه په نیشت دِ دُنیا خوبئ په شته دنګیروی ... دهغهٔ فقیری بنائی اعتبارتَ

دا څو ورځې غنیمت دګل دیدن دے ... ولے نهٔ راځی بلبل ونو بهارتَ

چه ئې تللم په خندا خندا دیدن ته ... اوس ئې دړومم په ژړا ژړا مزارتَ

لک او کروړ که پسے خرڅ عبد القادر کا

هم تیر عمر به رانهٔ شی په بیارتَ

## (۲۸)

په یوه نظر چه وکړی ساقی ماته ... هغه دم مے صد ساله توبه شی ماتَ

دفراق لمبو مے تنه لړمون وُسوهٔ ... آرزو ئی مے شی هر کوره ستا وماُتَ

عاشقی مے مادر زاد خوئ وخصلت دے ... دا خصلت مے خدائے ورک مهٔ کړه ترماتَ

---

ۓ ماء په عربئ کښې اوبو ته وائی - یعنے لړمون مے وسهٔ - اوس مے خواهش دے چه شونډے رچه شاعرانو ئې عام طور آب حیات سره تشبیهه ورکوی) راکړے چه سوے لړمون مے یخ او آسوده شی .

روح په مثل د آدم قالب څوا دے | فرزندان ئے څوک شول پلار ته څوک امات
چه عیسیٰ د تعلق له باره خلاص شو | د تجرید په پرونو ورځے سمات
عاقبت به مجاز واړه حقیقت شي | اشارت دے جو فروش گندم نمات

یکښے بند په دواړو پښو عبدالقادر شو
خلاص د نشی ستا د مینے له حمات

## (۲۹)

عاچه فهم وکړو د دور په بر بست | شکست ئے په درستی کښے د درستی ئے په شکست
هیڅوک هوښیار نشته د دنیا په خرابات کښے | څوک مستی په مے کا څوک د یار په شونډو مست
سل ځله پیاله د صافو ورکړه ترے به واوړي | هر چه ئے پیاله د دُرد نصیب وی په الست
پاشی ستا په ناسته غم اندوه زمانه لاله | جگی جگی تل کړه دا برخاست او دا نشست
څه نسبت د مینے چه فرښته به ئے په سپی کا | خاندی ورقیب ته یار همه زما یه قست
هر چه معنوی فقر ئے بیاموندو له حقه | لا یه محبت د زړه ئے په نیست لری تر هست

بوئے هلک به واړه آخر تا سته وُجاروزی
ځان کړه نکه مزکه کړے عبدالقادره پست

---

خ
۱ فرزندان شول څوک پلار ته څوک ماما ت
۲ یکښے بند عبدالقادر په دواړو پښو شو
۳ سل پیاله د صافو ورکړه تر به نوینی
۴ پاشی غم اندوه زماله دله ستا په ناسته

## (۳۰)

څو بدل په عبادت نه کړې عادت　　بیا به نه مومې لذت د عبادت

چه سبب یې د دوزخ زما کښتن دے　　بیا به نه مومم دا هسې شهادت

په ننګریزو د نازنینې د لیلی سرے دی　　هوسئي دړومي د مجنون په عیادت

سیادت به د طاوس نه د هما یې وو　　که موندۀ شوے په چورۍ یې سیادت

د استاد په سعي کله د کاموي　　چه مقطوړ وي هغه څوک په بلادت

چه هیڅوک یې نه پښتنه نه ماتم کا　　هغه مرګ دے هوړے دے سعادت

## (۳۱)

نمر وته نه ګورم، ګورم زۀ وخپل نګارتَ　　ګل ته نظر نه کړم، نظر کړم هغه رخسارتَ

لرے لمامۀ ځه، چه مے ځي ارواح له تنه　　ومرم که و نه مرم، که یو دم شې لما بیارتَ

باغ وته مے بولي، نه مے بولي دیار کوڅے ته　　کوڅے ته به یې درومم، نه به درومم وګلزارتَ

دېر خلق مے ولید، وے نه لید ستا په څیر یو　　چین ماچین ته لاړم، نه چه چین ماچین تاتارتَ

و به څوی له غمه زنهار، ووایه مه وایه　　راغے خیر، راشي طبیب وخپل بیمارتَ

نور به یاري نه کړم، کړم په غم اخته یارانو　　هیڅ یې را پرېښنبول، غم یې پرېښو وماخوارتَ

دالښته چه راشي، تللے ځان عبدالقادر ته

هر څو تللے ځان که تن ته نه راځي په بیارتَ

---

خ { ۱ څو چه زړۀ په عبادت نه کړې عادت
۲ چه ارواح مے ځي له تنه }

## (۳۲)

په ازل ئې چه د بد و دے سرشت — خواه ناخواه به هغه کا کارونه زشت

په[1] هر چا بانده شوه چله لاره[2] آسانه — ځوک په لور د کعبې ځي ځوک د کنشت

په خندا په هوس تله شي و دوزخ ته — په ژړا، په غم په لوري د بهشت

بنه ویستا په وخت د لو پاخه دهقان وې — "هر کس بد بود آخر هر آن چه کشت"

زاهدان چه بهشت غواړي و عارف ته — دوئ غلیدلي هغکان دي د دربشت

پریشانی[2] پرې همیشه تا ئیں کوینه — زما ستا د زلفو یو دے سر نوشت

د مقصود په لوري ځه عبدالقادره!
که په ره د نقشبند ځې که د چشت

---

خ { ۱ په هر چا بانده آسانه چله لار شی
۲ پریشانی همیشه ده زمونږ بخره }

## (۳۳)

ځکه واړوی دلبر زما ولورت — نور به شا کړم د فانی دنیا وکورت

همیشه د جدائی په دریاب ډوب یم — د دیدن په طمع سر کړم کله پورت

د ذره زوړ د صورت توان مې هسې کم شو — چه فریاد د کمزورئ نه کړم په زورت

غمخواره[1] به زما څرنګ غمخواری کا — چه احوال د عشق وایه نه شی غمخورت

لاله زار به همه واړه قبرستان شی — که د یار د مینې داغ یوسم وګورت

تورې زلفې ئې د ځې په تاؤ تاو ییږی — ویښته تاؤ شی چه نژدې ئې کا واورت[2]

حد[3] د چا دے چه ئې لاس په رخساره ږدی — کله ګټې څوک ورووړې شی وسره سکورت

چه دریم تر رنجو تورې بې رنجو وی — په حیرت یم ستا د تورو سترګو تورت

چه منکر ته یار ستا ئې عبدالقادره! — په معنیٰ د نمر صفت کوے وکورت

---

خ

[1] غمخواران

[2] چه نژدې کاندواورته

[3] حد د چا دے چه ئې لاس په رخسار کیږدی.

# (۴۳)

بیا مے نوے مینه ورغله وَدِل ته
ګویا سرے لمبے مے پریوتے ګوګل ته

چه دا حسے رنګ په سرو لمبو کښے وُسي
بخپل زړهٔ پورے حیران یم ستا وربل ته

سترګے سرے لاسونه سرهٔ جامے ګلګونے
ګویا[1] بیا دړومي دچا وقتلول ته

کوم کم بخت سړی پښیمان کړے چه راغلے
تا ویُل چه زړهٔ به در یُشم بورجل ته

چا چه یو ځله لیدلے مخ دے
سترګے وُخوړے که به وګوري وَبل ته

دراتلو زیرے دِ باد په چمن وُکړو[2]
سترګے وُختے دګلو ستا لیدل ته

داوړو په ژړا لا کښلونه واشي
کله ګوري بنا ګُسته دچا ژړل ته

لا خندا ئے درسته کړے نهٔ وي خورشي
څهٔ فائده ده دلاله و غوړېدل ته

چه وَمخ وَته ئے ګورم ننداره ے
هرګز نهٔ پریږدي دسترګو وځمبل ته

مګر ګل[3] به همیشه په باغ کښے وُسي
چه په خواره سترګه ګل ګوري بلبل ته

دمے! تارے د زلفینو وما راکړه
چه ئے کښېنږدم دکفن وَرغول[4] ته

وایه وایه دبیان عبدالقادره[5]!
دواړه غوږه مے نیولي ستا ویُل ته

---

[1] ګوره بیا راغے دچا وقتلوُل ته [2] راوړو

[3] لکه ګل به همیشه وي په دا باغ کښے
چه په خواره سترګه ګوري و بلبل ته } خ

[4] اندرول. (پ)

[5] بیا بیا وایه دا غزل عبدالقادره (خ)

## (۳۵)

بَل کړه د اخلاص په غوړ چراغ د عبادت ‌ ‌ موم د عصیان ویلی کړه په اوړ د ندامت
ستړ ګے کړه اوره باران د وښکیو ځنی وړه ‌ ‌ کندے دِ میوه کا مندی نهال د محبت
هسے رنګه ومره چه خپل ځان له خلقو خلاص کړې ‌ ‌ نهٔ وی چه سبب شی د خلاصی ئے ستا رحلت
غم د نوړو واخله په چا مهٔ بَردہ خپل غمونه ‌ ‌ یا تو به دِ نوم شی په جهان د فتوت
تخم ئے یو ځل د کښتئ په خاوړه پټ کړه ‌ ‌ هله به زرغون شی د لوئی ئے زراعت
خوش بخپله بخره شه حسد له هیچا مهٔ کړه ‌ ‌ هر چا ته رسیږی خپله بخره خپل قسمت
موړ به هر ګز نشی د حرص د قحطئ وږے ‌ ‌ هیڅکله به وږے نشی موړ د قناعت
ناست په اور کښے بنهٔ ئے نهٔ د بدو په مجلس کښے ‌ ‌ اور د صورت سوزی، سوزی دین د بد خصلت
سوزی د حسد په اوړ وجود د حاسدانو ‌ ‌ خوښ ګرځی محسود له دغه اوره فراغت
ستا تدبیر دوزخ دے، جنت کار سپارل تقدیر ته ‌ ‌ خلاص شه له دوزخه ځان داخل کړه په جنت
یا څه ساقی راکړه، پیاله د میو پوره ‌ ‌ یار، د سین کتاره، وخت د بهار دے غنیمت
ستا پیاله چه وڅښم ویل کړم له خط و خاله ‌ ‌ بنهٔ غزل انشا کړم د دلبرو په صفت
یار ے باده خور شو، څرنګ نهٔ ځنی انکار کړم ‌ ‌ شرط دے دیاری زمونږ په دین موافقت
ستا په تلهٔ ے باغ د سعادت پژمرده کیږی ‌ ‌ وکړه د رحمت نسیمه! بیا مراجعت

هر چه له چا اروے غوږ کا نږ ه کړه ترے تیریږه
مهٔ کوه عبدالقادره چا سره حجت

---

ځ مقصود (خ)

## (۳۶)

خپلې مینې لیونې کړم و عالم ته
زهٔ له چا مانړې کوم وایم قلم ته

چه قلم د جدایئ زما و اهٔ شو
په ژړا مې ستر کې سرې کړې و شبنم ته

چه په مخ دِ تورې زلفې راخورې کړې
دا د غرهٔ آهو به پریباسې وسم ته

چه به وُد دَوِی اتلس زره قاسه
هغه ورځ به مخلوق گوری ستا وَفم ته

هر اُمت چه د رسول محبت نهٔ کا
سرنگون به یاره دړومی جهنم ته

طبیبان دِ غم زما د دوا نهٔ کا
تاویشتلې هوس نهٔ کا و ملهم ته

زهٔ قادر ئې بې آتشه په اوړ وُسوم
لړ د دب دیاره وُوایه صنم ته

## (۳۷)

نن ئې بیا کښېښو په سر باندِ دستار کج
لکه مست هاتی په لار کوی رفتار کج

مخ[1] به چیرې راته سم کړی په یارئ کښې
کهٔ همیش به ئې لری راته نګار کج

فلک[2] تا غوندې د ِ سم کړه ته پسې ئې
له غروره به تل ځودړ وې په لار کج

دانا وران کاړونه ساز په دانائی کا
په تعجیل سره نادان کاندی سم کار کج

په راستئ کښې چه موندهٔ رستګاری شی
سکه زنهار! وچاته مهٔ وایه ګفتار کج

هر چه سم ځی په روزګار کښې غم ئې نشته
همیش غشی مومی تاؤ د اُستګار کج

سروې! هیڅ په پستو ونولوئ مهٔ کړه
ستا به هم کا نده قامت کاندی روزګار کج

کهٔ فلک ورسره کج شی غم ئې نشته
مهٔ کړه خدائې عبدالقادر سره خپل یار کج

---

[1] مخ به کله په یارئ کښې راته سم کړې [2] فلک تا غوندې د ِ سم کړهٔ ته ورو پسې ئې ؟ خ

## (۳۸)

چه یې سپې کړۀ د دنیا له ځانه څخ — هم هغه کاندي ځان خلاص د دیوله اخ
چه وئیل د عرفان کا اثر یې نهٔ وي — ابلیسک دے ځني تښتهٔ په فر سخ
په خفیه ذکر یې زر مړئ خفه کړه — کهٔ شیطان دِ په خاطر کا منګل ښخ
د فراق لمبو وهلیه ! رانژدے شه — چه سینه دِ کرم په مل د سینې یخ
ستا دیدن رمق را پا تو دے پرے پاتے شم — جګي جګي یاره ناست وسه راځخ

دتوبے دریاب یې تاوته پیدا کړهٔ
سپین کړه ځان عبدالقادره له دے سخ

## (۳۹)

کهٔ د نور و توانګري په سیم و زر دَ — د عاشق ده په سپین زړهٔ په چهره زر دَ
لکه تږے د سرو اوبو حظ موی — مشتاق لاموي لذت دیار له درد
په سپین مخ دِ ولښتهٔ نهٔ دي تور لوګي دي — چه وتلي دي زما له آهِ سر دَ
چه د تورے مخ یې سور کړ په میدان کښے — هم هغه سرخروئ یوسي له نبرد
بل ګناه یې بے مردئ یې نهٔ ښکاریږي — چه نامرد سرے کینه کاندي له مرده
که په شاه بانده یې په کیش په سمور تیر شو — ګدا یې هم په کندکښے روغ ووت له برد
په نامردو مشک عنبر نوے فلکه — آلوده لرے د مرد څهره له ګرد

خپل نصیب کړهٔ په تاخار عبدالقادره
یار کهٔ هر څو حسن زیات لري تر ورد

---

۱ چه سینه دِ په سینه بانده کرم یخه { خ

## (۴۰)

نا آشنا تر آشنا بهٔ ئې نن او ګاندَ — لهٔ دې پسه زړهٔ له چا سره مهٔ خاندَ

که ئې لوئې د زړهٔ په وینو لکه ګل کړې — هم هغه به په زړهٔ درکا لښته تاندَ

چه تر سرئې ځان لوګې کړې قربا نیږې — د جفا په اور دِ سوزی لکه سپاندَ

خپل پردی ته ځائې د طمعې پا تو نهٔ شو — خدائې دِ نهٔ کا څوک پخپل چار درماندَ

د عزت[1] تر خوته ځان ینوې نهٔ شې — په خوږو لپې د مچ عونږِ ګزاندَ

بې اجله به ئې خلاص له درده نهٔ شې — د بدخوئې سیارهٔ[2] په چا مشه اړاندَ

دستم په ښکر دِ خوښ عبدالقادر کړهٔ
په ظاهر صورت سړې په خوئې ئې داندَ

---

[1] کهٔ "عزت" "غزلت" شی بنه به وی. (حبیبی)

[2] سایه (خ)

# (الم)

زګه دِ تل وینم وزان د سحر باد َ — پـه مقدم دِشي سینه د غمژن بنا دَ
چه ئې لاس د دلاسے په تندی کیږدے — قراری د بیمار وشي له فـــریا دَ
نهٔ تنها[۱] فیض نثار کړے په ګلونو — لا خار ونه اُمیدوار دی ستا له دا دَ
په بنهٔ بُوَیس د باغ ګلونه معطر کړے — په نفس کړے د غنچے غوټې[۲] کشا دَ
ستا په راغله د باغ وُنے زرریزی کا — سروه تهٔ د بار له باره کړے آزا دَ
پرورش د بهره منـدو بوټو وکړے — بے بهرے بُوټې وکاږے له بُنیا دَ
چه ترمنځ د قاصد انو لارے بند شي — پیغام یار ته دیار راوړے له هیوادَ
ویعقوب[۴] ته دِ خبر دیوسف راوړ — نامراد دِ هم آغوش[۳] کړ له مــراد

دوصال په زیری هسک عبدالقادر کړه
پریښتے دے هجران له اَده ببا دَ

---

۱ په تنها فیض نثار کړه په ګلونو
لا خاروننه بیرون دی ستا له داده } (خ)

۲ غوټه (پ)

## (۴۲)

صباحت د ولایت نمک له سنده — ددے دوارو ئے ساز شوے زما چند
دکوثر داوبو آب دے مخ لرینه — د مشتاقو ځنی نهٔ ماتیږی تند
په دا دوه[1] حرفه ادا مسلمانی ده — هر چه نهٔ پسندے ځان ځما مهٔ پسند
هر پیوندے د ذلت قطعیت کاندی — بادشاهی تر تا قربان د عزت کند
چه ئے اوس په تولو لونهٔ مرینے — هم دا خپل دولت به وکا پیتا شند
د زاهد له صومعے عبدالقادره!
وُ و ځه مراد دخپل خاطر غواړه له رند

## (۴۳)

اے په زنے ناشپاتئ په شونډ و قند — په قامت تر سروے وُنے لا بلند
خوشخرامه گل اندامه عنبر[2] موئے — نو د نماے خود ستائے خود پسند
کهٔ زاهد دے کهٔ عابد ترے نه خلاصیږی — خلق دِ کړے په تورو زلفو بند
منوّر دِ کړ عالم د مخ له نوره — لکه نمر په تمامی عالم څرگند
ستا په تش[3] نظرے رنځ د زړهٔ ورکیږی — یو ځل وُکوره وما ته ستر گے بوند
په هجران به دِ ترکوے خوار وزار یم — په وصال ے بهره مند کړه بهره سند
هر قدم په فهم ږده عبدالقادره!
د عشق لار کُوڅے کوڅے ده کند کند

---

۱ حروف
۲ عمبر لوئ } (خ)
۳ کاتهٔ

## (٤٤)

چه مې وُلیدهٔ دیار سره اغیار ګډ — په فریاد شوم په ژړا شوم په چیغار ګډ

آئینه د زړهٔ صفا له خاکسارئ شی — هم په دا له تورو خاورو شهٔ خاکسار ګډ

عندلیب د زړهٔ له تاوه نارې وکړې — چه ئې وُلیدهٔ له ګله سره خار ګډ

هر یو ګل مې په زړهٔ خار غوندې څرخیږی — چه بې تا شم ګله ګله په ګلزار ګډ

ستا په زلفو کښې مې زړهٔ هر ګوره پریشان شو — مسلمان دِ نهٔ کا خدائے په هندو بار ګډ

نادانی نادان همیش لری په عیش کښې — هوښیاری د غم په سینه کاندی هوښیار ګډ

چه آخر ځنې واتهٔ په ډیر ارمان دی
نهٔ به شی عبدالقادر په دا بهار ګډ

## (٤٥)

مُزیّن ئې کا یو څو په افسر سر — بیا ئې مات کا د دروان غضنفر فر

اورنګزیب په څهٔ خلاصې ورځنې مومی — دا مزرې دارا شکن دې سکندر در

څکه نوم ئې د ذهب و د باندې کښیښو — چه د باد غوندې هر دم کا ګذر زر

ن په څوله تورو و خاورو سرو پروت دې — چه ئې ډک وو همیشه په دلبر بر

برابه مې آشنا وُلیدهٔ په خوب کښې — په ژړا مې کړهٔ په وُښکو لبستر تر

که په اصل وارهٔ یو دی په دا څهٔ شو — په قیمت سره سم نهٔ دې ګوهر هر

په معنی کښې بشر نهٔ دې په رنګ لیوهٔ دې — چه د دهٔ له لاسه مومی بشر شر

هر سړې په خپل مقدار خریداری کا — ځنی اس ځنی هتهو ځنی خر خر

په بنګښ ئې سرفراز عبدالقادر کړهٔ
د ژوندون له باغه خوره د سمبر بر

## (٤٦)

کهٔ هر څو لعل آبداري لري دلبر
نهٔ شو هيڅکله برې يخ د چا ځيګر

د هغو شهلا نرګسو له فراقه
هميشه مې تر نرګسو ځي ګوهر

هر يو ګل يې د ښائست د باغ منظور دې
ولې لائې په سمن لري نظر

راشه وګوره زما زيبا صنم ته
که به ګورې په يو ځائې شمس و قمر

سروې سر د خجالت په مزکه کښېښو
چه سرهسک کړ په بُستان د يار عرعر

د ژوندون چينه يادېږي په تياره کښې
ما له خدائې راکړه چينه تر څنګ د نمر

چه سُنبل يې باد پريشان په نسترن کا
په غروب شي د عاشق د بخت اختر

چه غنچه يې شګفته په تبسم شي
له ګوهر وې جهان شي مُنوّر

کهٔ له ډېره رشکه وچوي حد يې څهٔ دې
چه له ملا سره يې مو وهي کمر

که يې نوش عبدالقادر د شکر مې کا
برې به شي د مرګ تلخي شهد و شکر

★★★

## (۴۷)

بړ بړ راګشه زما دسترګو تورَ — خدائے مے مهٔ کړه دزړهٔ مینه له تا نورَ

زما ستاله مینے ډیر عالم خبر شهٔ — څه به ویره کړے له شرمه له پیغورَ

عاشقان له تهمتونو نهٔ خلاصیږی — همیشه بانډِ غوغا وی لور دَ لورَ

سپے که هر څو غپا ډیره کړه مزری ته — زمرے هیڅ نهٔ کا پروا ددهٔ له شورَ

کهٔ بخمَن وئیل دِ نهٔ کیږی دَ ماته — کله کله راته کړه خبره سپورَ

چه رقیب وته بنکنځل کوی زهٔ سوزم — جګی جګی بے لمانه بل مهٔ زورَ

زور قوّت دزوړ ورو دزړهٔ کم کړے — یوه څهٔ بده بلائے دعشق زورَ

مستغنی ئے دجهان له بادشاهئ کړم — دهمائے ترسیوری بهٔ ده ستا سیورَ

څو دِ تورے سترګے تورے خاورے نهٔ دی
تل پرے مځ عبدالقادر ده دیار ګورَ

---

لے بوځن (غ)

مخ په هر لوري جلوه کوي دیار — أَبْصِرُوا[1] أَبْصِرُوا أُولُوا الأَبْصَار
بې محابا راکړه کښېږده قدم — لَيْسَ[2] فِي الدَّارِ غَيْرُنَا دَيَّار
په بد صحبت دښمنۍ زوے شۀ خراب — اِتَّقُوا[3] مِنْ مَجَالِسِ الأَشْرَار
په ورکول دسر وصال مونده شي — أَبْشِرُوا[4] يَا مَعَاشِرَ التُّجَّار
طعن وپېغور وما ته مه کړه شیخه! — أَنَا عَاصٍ[5] وَرَبُّنَا غَفَّار
که رقیب ډوبېږي له یاره سره — قُلْ[6] أَعُوذُ بِرَبِّ لَيْلٍ وَنَهَار
دجواب څوک دے چه آواز وکاندي — لِمَنِ[7] الْمُلْكُ وَاحِدُ الْقَهَّار

رب بښه یار عبدالقادر ته ورکړه
وَقِنَا[8] رَبَّنَا عَذَابَ النَّار

---

[1] وګورئ وګورئ اے خاوندانو دعقل.
[2] نشته په کور کښې بغیر زموږ نه دکور خلق.
[3] ځان وساتئ دمجلسه دېدانو.
[4] زېرے وکړئ اے ټولیه دسوداګرو.
[5] زه ګنهګار یم او خدا ئے تعالیٰ زموږ بخښونکے دے.
[6] ووایه پناه غواړم دخپل رب سره شپه او ورځ
[7] چا لره دے بادشاهت؟ یو خاوند دغلبے سره.
[8] وساتے موږ خپله ربه عذاب داور نه.

## (۴۹)

نهٔ به ستا دحُسن تل وی هسے دور — نهٔ به زړهٔ وی دعاشق مدام په ټور
چه داواړه بقانهٔ لری ستیرین ی — بیهوده هومره ستم کړے هومره جور
زړهٔ دِ سخت دے په سختیٔ ترسختیه کانړی — کهٔ درست تن دَمصفا دے تر بلور
بے جوهره بنائست نهٔ لری هیڅ قدر — د شاهانو په لاس بازکښینی نهٔ میور
چه په بدنظر، نظر وُکړے او بهٔ شم — څهٔ حاجت دے په ما خوار دا هومره زور
مخ له یاره جاریستل خندل رقیب سته — واه واه واه عجب یاری ده عجب طور

هسے یار عبدالقادر په بخره بیامُوند
چه صورت ئے دسړی خصلت د بور

## (۵۰)

اے چه دبنائست په باغ کښے گل لرے بیشمار — هیڅ به دِ کم نشی یو څو گل ورحتی مار
شونډے ئے مهرے زلفے ښامار ترے جاړوتلے — بویه سرباز ان چه مهره اخلی له ښامار
زما او ستا ترمنځه "زما" "ستا" وینا نهٔ بویه — نهٔ شی په یاری کښے یه همارا وه تمهار
سخت دے دنیمگړیو طبیبانو ناز تر مرگه — مرگ ته غاړه کښیښده داړومه کوه بیمار

پاس په بام ولاړه د غمزے ناوک په کړت کښے
زړهٔ به دِ زخمی کا، په دا لاړه مهٔ ځه یار

# (۵۱)

زړهٔ مې هرګوره وو له هجرانه افګار
شکر حق را که باز آمد دیار

سروه سرکوز له انفعاله کاندی — چون خرامد بسوی باغ نګار
څوک به لاله دیار د مخ کا مخې — آن سیه دل کجا وآن رخسار
په موافق د محبت شی عتاب — مشو از جور یار خود آزار
متحیر ئې په لیدو د جمال — همه خوبان چون صورت دیوار
تو اتصال دِ د عاشق شی نصیب — خواه در باغ وخواه بر سر دار
باغ وشاهد بنهٔ یاران موجود — خیز ساقی شراب ناب بیار
ګوره بیا کله رائېشی هغه وخت — که نهم لب به لب شکر بار

نور د زړهٔ مراد عبدالقادره پرېږده
ګر بیابی مراد دِل این بار

# (۵۲)

یار هغه چه ګهے مهر کا ګاه قهر
کله کله نوشدارو شی کله زَهر

ګاه باران شی د ژوندون اوبهٔ کا توئے
ګهے اور شی لُولپه کا تمام ښهر

که د اسے یار موندهٔ شی په طلب کښے
سستی مهٔ کړه هم ئے پټ غواړه هم جهر

شپه او ورځ آه و فریاد سوز و ګداز کړه
له هجرانه روان کړه د سترګو نهر

و عاشق ته د یار غم هرګوره ارزان دے
که موندهٔ شی په تمام هوس د دهر

ګوره څوک عالم به ورک څوک به خراب کا
لوړ په لوړ د فتنو سین وَواههٔ لهر

د ذرهٔ باز به ږ دهاله د فکر ښکار کا
که بیدار وی په وروستی په وړومبی پهر

که هر څو عاقل هښیار، خولیونے شی
چه په خوب کښے ورښکاره شی پری چهر

په ارمان په حسرت لاړل له جهانه
کهٔ پرویز وو کهٔ دارا که منوچهر

د زوال ویره کوه عبدالقادره
په لویئ ئے غلط مهٔ شه د سپهر

* * *

# (۵۳)

چه ئې زړهٔ زما سوړے د عشق په تیر کړ
ترهغه سوری مے مخ د آشنا څیر کړ

ستا د مخ آفتاب پرے وُخوت پړ رڼا شوه
چه ئې ستا په تورو زلفو کښے شبګیر کړ

له هوسه په خندا خندا پښتا ولاړه
سخندانو چه ګل ستا د مخ نظیر کړ

چه مے زړهٔ دیار په وصل کښے خوشحال وُو
یو په سله تر هغه هجران زهیر کړ

له دے اوره سوزان اور دبیلتانهٔ دے
ځکه ځان هندوے سولو وته خیر کړ

په سپین مخ باندِ ئې خط دے چه ښکاریږی
که ئې شونډو ته مین یو جوړ بهیر کړ

نامراد چه مراد پریښبهٔ په مراد شهٔ
بے خبر ئې بے خبرئ په حال خبیر کړ

بے محنته راحت نشته په دُنیا کښے
خوشحال نیب د چاچه ئې دلګیر کړ

له هجرانه به څهٔ داړ عبدالقادر کا
چه ئې خیال دیار د مخ په زړهٔ تصویر کړ

---

۱ د غه اَو دے نه پس دوه نور شعرونه "پ" ته لری ـ د
"ق" نه مو شامل کړهٔ ـ

# (٥٤)

سږ دې یا هجرانه دېر عالم په غم کړ
کور په کور دې په دې سک نوے ماتم کړ

چه څو کاله مې تېول کړے په خوارئ وو
هغه عیش دې په غم بدل په دم کړ

له پېچونی دې د غم سوارهٔ ښکاره شول
د هوس لښکر دې درست درهم برهم کړ

تورلوګی د آه له هره ځایه خېژی
دنړا ورځ دې په عالم باندې تورتم کړ

لکه تا کړه د اُمید غنچه سږ تویه
خزان کاله په ګلونو داستم کړ

بلبلان ئې له فراقه په تاړو شول
له دې غمه دې د سروے ګردن خم کړ

سن ذرسل دجدائي څوارلس دپاسه
دا غزل مې په بیاض باندې رقم کړ

نور به څهٔ عبدالقادر له چا خندا کا
تا سږ کال د آشنائي ئې قدر کم کړ

★

# (۵۵۱)

راته څۀ وائے چه "وایه زړۀ دِ چا یوړ؟"
بے تا څوک دی مالیدلی وایه "مایوړ؟"

په ژړا ژړا مے زړۀ له کبنلیو خلاص وو — په خندا خندا ئے بن را څخه بیا یوړ
چه دعشق جمال جلوه وکړه عالم ته — ترمُقرِ ئے دمنکِر خاطر بخوا یوړ
دلبرئ ته په بنکاره درحُم زاهده! — بیا به وائے چه ئے زړۀ زما په غلا یوړ
شیرین څان شیرینے ځار ترخپل میُن کړه — په داکار ئے گوئے له کبنلیو دوفا یوړ
له اجله ئے هورے خلاصے وُنشه — څان ادریسؑ له مزکے پاس کۀ په سما یوړ
د باد وریو څوک پوښتنه کا چه څۀ شو — بیا په بخت په لاس کبنیوزی چه هوا یوړ
چه دُنیا ئے پخپل څان باندے تنوړ کړه — وفلک وته ئے څکه مسیحا یوړ

په بوسه مے ئے خاطر چیرے بینۀ نۀ کړۀ
دا ارمان عبدالقادر به ما په خوار یوړ

# (۵۶)

ښو خبر نهٔ دی وګړی له دې راز
ګنی بېل حقیقت نهٔ دے له مجاز

عارفان چه له خو دیه ځان خالی کا
تسبیح اروی د شپیلیه له آواز

کهٔ په عشق کښې نسب شرط د محبت وے
د محمود مینه به نهٔ وه له ایاز

امتیاز ئے تر مینځ حسن را پیدا کا
ګنی فرق د بدخوئی نشی له ناز

چه ئے ونغښته ملن له خار وخسه
سروه وُنه شوه په باغ کښې سرفراز

چه آغاز د چارے بنهٔ انجام ئے بنهٔ شی
دانا ځکه تل په بیم دے له آغاز

زهٔ په داو خپل مئین ته پیشکش نیاز وړم
چه کړے د هیڅ څیز نهٔ لری بے نیاز

ستا به ساز بے سوزه هیڅ سرود نشی
اے زما دِله تمام له سوز وساز

سین خُونی باد مخالف شپه توره تمه
ګوره چرته به شے سر زما جهاز

ولوږه، تنده، رنځ، زحمت، نورځواری ئے
همګی واړه آسانه دی تر آز

چه خپل یار عبد القادر ته په نیت بنهٔ وی
نور ئے کومه اندېښنه ده له غماز

# (٥٧)

تهٔ وې درومه چېل هوا کوه هـوس
ترهغه چه دېخوا کړهٔ يو په لس

له ازله غم زما د زړهٔ نصيب دے
چه خلاصے مے څني نهٔ شي يو نفس

ګله! تا دِ خدائے تازه لري په باغ کښے
اور په بخره د اغزيو وی دَ خَس

ما ژوندون د محبت له اوره بيا مُوند
څکه سوزم په اختيار لکه ققنس

چه چېل زړهٔ را څني څي ېوے تے نهٔ شم
ستا په زړهٔ به ژونک موم دسترس

ساقي زهٔ د صافو ميو لائق نهٔ يم
هزار شکر که داد وکړے يو بکس

په سرو شونډو دے تورخال دَ چه ښکاري
کهٔ دا نښتے دے په شونډو کښے مکس

کهٔ وصال عبد القادره د يار غواړے
يو قدم په دُنيا کښيږده بل په نس

---

ئه هزار شکر کهٔ داد وکړے د بيکس (رغ)

# (۵۸)

خیال ئې چه په زړهٔ کښې د رخسار ساتم همیش
نه په کوګل کښې ګویا نار ساتم همیش

بحر په کشتۍ کښې نهٔ ځائیږي سین د وښکیو
ځو به ئې په سترګو کښې ایسار ساتم همیش

ستا چه خوشحالي کیږي زما په خواریدلو
پس له دې به ځان تر دې خوار و خوار ساتم همیش

عیش منغض شي په ورتله ئې زما د خلقو
ځکه له عالمه ځان کنار ساتم همیش

دیر رابانده خوښ دې په بل چاپې سرزو نشي
پټ نه نه په زړهٔ کښې ستا آزار ساتم همیش

نخښهٔ په هجران کښې ستا له لاسه داغ لرم
ګل غوندې تازه د داغ بهار ساتم همیش

خوښ ئې په آواز یم چه فریاد عبدالقادر کا
ځکه ئې د اهسې شان افګار ساتم همیش

---

ئه نخښه په هجران کښې ستا له غم داغ لرم (خ)

## (٥٩)

چه صادر شو ستا له لوري په ما خوار خط
له خاطره مې اندوه کړ تار په تار خط

معطر له خوشبويۍ اهل مجلس شو
چه مې واکړه لفافه د عنبر بار خط

په تحقيق چه نيم ديدن ورلره يو سي
له هيواده چه يار و کاندي په يار خط

سبزه نهٔ ده چه په مزکه زرغونه شوه
دا د خپلو راتلو راستوهٔ بهار خط

حسن خط د ويزارۍ و مخ ته ورکړ
چه ښکاره شو په عذارو د نګار خط

هيڅ زنګي به ئې په هيڅ رومي و نهٔ کا
لکه کاندي په سپين مخ بانډ ناتار خط

ستا د شونډو مهره څوک و اخلي دلبره!
چه ترې پريوت چاپيره لکه تورمار خط

د بناګوست آفتاب ئې پټ شو ليد ئې نهٔ شي
چه ئې پا سيدهٔ په مخ لکه غبار خط

د دهٔ ګېر ستا اندوه ئې له زړهٔ کم کړ
منت کړهٔ عبدالقادره پتابار خط

*

# (۶۰)

کهٔ هر څو نصیحت ښه وائې واعظ
بهتر دے چه ما ته نهٔ وائې واعظ

عاشقان په عشق کښے کله نور څهٔ اروی
وګټرو ته وعظ څهٔ وائې واعظ

نصیحت ولیونی ته لیونتوب دے
کهٔ پاخهٔ وائې اومهٔ وائې واعظ

په خاطر باندے سخت ترکاڼی لګی
پند که نرم تر اوبهٔ وائې واعظ

لا ترما په زړهٔ کښے تهٔ باندے مئین ئے
مذمت دعشق په خلهٔ وائې واعظ

په خلوت کښے په خلاف دواړو کار کړے
هر چه تهٔ په ممبر ؤوائې واعظ

ستا وئیل دا باندے څهٔ اثر نهٔ کا
چه تهٔ نهٔ کړے هر چه ته وائې واعظ

ترکنډیر دی لا تر څهٔ عبدالقادر ته
کهٔ هر څو ورته خوار وائې واعظ

★

## (٦١)

بې ما څوک زما له یاره موی حظ
رانده کله له ګلزاره موی حظ

دیار مخ دے منور خدائے له نوره
کافر کله له دیداره موی حظ

فقیرانو ته ښکاریږی سرے سرو سپے
دُنیادار کۀ له دیناره موی حظ

طالبان د دُنیا سپی، دُنیا مرداره
سپی هر کله په مرداره موی حظ

نس مکس ریاضت اور ورځنی تښتی
زړۀ پتنګ، پتنګ له ناره موی حظ

په مجنون د هلکانو کاڼی ګل دی
څوۓ ووهی، هومره واره موی حظ

د آزار قدر د نورو څخه نشته
عاشقان دِ له آزاره موی حظ

خاص الخاص عبدالقادره پرے پوهیږی
عام په څۀ ستا له اشعاره موی حظ

* * *

# (۶۲)

کهٔ په کور کښې دولت ډیر لري طامع
تر حساب تر شماره تیر لري طامع

چیل ډیرلږ دبل لږ ډیر ورته ښکاریږي
دبل یاد لري چیل هیر لري طامع

د حرص په زنځیر سپي غوندې ځښکاوه شي
زور قوّت که ځ زیات تر شیر لري طامع

بیا ئې نهٔ مونده هیڅ لذت له خپله عمره
خون ژوندون په ځان ګنهګیر لري طامع

که ګنجونه د قارون ورته موجود شي
ګمان مهٔ کړه چه زړهٔ سیر لري طامع

⋆ ⋆ ⋆

## (۶۳)

یو ځل بیا هغه نګار ولیــدے دریغ
آهو چشم ګل رخسار ولیــدے دریغ

چه قرار ورځنې لاړله دېره غمه | بیا هغه خاطر قرار ولیدے دریغ
د سپرلي ګلونه وایه باغ او راغ شوے | د بلبلو پرے چیغار ولیدے دریغ
په خنده اخندا راتلے تنړیٔ شلیدٔے | له مستئ ئے خوردستار ولیدے دریغ
چه له دېره کبره سم نهٔ ځي په لاره | هغه ترک کج رفتار ولیدے دریغ
چه په تله ئے نور زماله سترګو یووړ | بناګسته نور الابصار ولیدے دریغ
د دورئ ئے اندیښنے له مینځه لاړے | یار له یار سره کنار ولیدے دریغ
په عاشق باندے ئے مهر رنګا رنګ کړے | ترنظر ئے رقیب خوار ولیدے دریغ
چه په هجر کښے ئے حلق زما تریخ کړ | په دوه شونډو شکر بار ولیدے دریغ
پاسی په زړهٔ باندے میشت دغم بنګړ د | دا بنګړے تار په تار ولیدے دریغ

دا آرزو عبدالقادر لری په زړهٔ کښے
چه ترمرګ پخوا ځل یار ولیــدے دریغ

---

۱؎ تنړئ پرانتے (ق)

۲؎ په وصال ے تار پتار (ق)

## (۶۴)

چه آخر به ځني درومي سینه داغ
بیهوده باغبان نازیږي په دا باغ

چه داخل دي د دُنیا په خرابات کښې
په وار وار به واړه څښي د مرګ ایاغ

تش ساتل د دهٔ نصیب نور به ئې یوسي
په دُنیا دنیادار وے کا دِماغ

د بلبلو غونډے ګشت په ګلو نهٔ کا
په مُردارہ باندے ناست وي لکه زاغ

په طلب ئې بادشاه ګرځي ګدائے بیا مُوند
کهٔ آرام کهٔ آسائش دے که فراغ

په لحد کښې به د شمع رڼا نهٔ وي
مګر یو سے درسره د آه چراغ

سرے سرے وُښکے د مجنون دي څڅیدلي
غوړیدلي لاله ګل نهٔ دي په راغ

د نیستۍ په لاره څه عبدالقادره
ګوندے بیا مومے دیار د دره سراغ

★ ★ ★

## (۶۵)

دروغژن وعده خلاف     نهٔ دِ کا د مردئ لاف
شاهدی لی د دروغو     په څېل ځان باندے خلاف
نهٔ یو درنګ دیار په کوڅے کښے     نهٔ سل کاله اعتکاف
د کعبے تر طوافونو     ښهٔ دے لا د زړهٔ طواف
زړهٔ په مثل آئینه دے     تن په مثل د غلاف
هاله مخ پکښے لیدهٔ شی     چه ئے مخ لری تل صاف
آسمان خونه د فقیر دہ     نالئ مزکه نمر لحاف
قوت ئے څېل خونِ ځیګر وی     منت نهٔ وړی د اجلاف
رګ ئے تار تن ئے رباب دے     صُوتٌ[1] ئے تل د یار اوصاف
تل انصاف ورکوی بل ته     له چا نهٔ غواړی انصاف
صلح[2] کُل دے له عالمه     له څېل نفسه ئے مصاف
چه په ښهٔ خصلت شریف وی     هم هغه ګڼړه اشراف
په نسب چه خوئ ئے بد[3] وی     نسب کله دے معاف
یو یو ناف دے چه نافه شی     نافه کله شی هر ناف
ستا قسمت عبدالقادره!     نون پیوند نهٔ وه له کاف
هاله وشه حرص مهٔ کړه     کهٔ مومن ئے په حا قاف

---

۱ صوت     ۲ صلح کل وی     ۳ بدشی } (رغ)

## (۶۶)

چه قانع په یوه څاڅکي شي صدف
قیمتي ګوهر ئې ځي په هر طرف

کهٔ عزت غواړې قانع پخپل قسمت شه ورکړه لا که بزرګي غواړې شرف
بند ول د دنیا بند د جهنم دے آزاده وُ ځکه کښېنوله په کف
د دُنیا خلق مې وُلیدهٔ په سترګو یوځې جمع په حرص لا ، بل تلف
چه ژوندون همیشه نشته په دا ځهٔ شو په حشمت کهٔ سلیمان شې یا آصف
د سړي څرلښت په علم په حکمت شي د چارپایو څرېدل وي په علف
کهٔ څوانمردئې بل آزار مهٔ کړه په ګلو ځان د بنو د بدو تیر ته کړه هدف

تل له خدایه ترس کوه عبدالقادره!
حق خائف ته دي ویلي لا تخف[ئه]

ئه مهٔ ویرېږه - خوف مهٔ کوه ۔

## (۶۷)

سرو مال ئے شو تالا په تور د عشق
لاړ نۀ دے لاړ له سره شور د عشق

هوائی د عاشقانو په پیغور دہ
ما منلے په تندی پیغور د عشق

د آیاز تلی محمود کښیښودل په سترګو
نندارہ کړہ ګوره زور وشور د عشق

څو دیار د قامت خیال ئے مستی نۀ شی
په نور څۀ به نۀ شی هسک نسکور د عشق

له اوله ئے د شمع لړمون وسوۀ
له غه پسه پتنګ وسوۀ اور د عشق

په ګوګل کښے ئے ذره نۀ دے که باور کړے
د صورت په خاؤر ویټ دے بکور د عشق

پیاده پښے ابلے تۀ دیار په لوری
د مجنون غوندے به نۀ وی سور د عشق

که داخل د عشقه خلاص عبدالقادر شی
نوم به وانخلی په ژبه نور د عشق

## (۶۸)

له صادقه مخالف وی منافق
منافق له منافقه موافق

لیونے وبیدردانو ته ښکاریږی
د عاشق قدر په چاوی؟ په عاشق

د عذرا عزار ئے عقل څینی یووړ
کۀ مجنون شو عزر عشق وو د وامق

شکر نن ئے د سپی نوم راباندے کښیښو
کۀ هر څو دے نافے نۀ وُم لائق

فوقیت په پاس ناستی نۀ حاصلیږی
کله خس په ملغلرو وی فائق

چه به ستا له دره ځم دسر په ویره
آه به چیرے پټان نوم بدم د آبق

کۀ طالب ئے د وصال عبدالقادره!
اول لرے کړه له دله علائق

---

ئے ستنی (خ)

# (۶۹)

خدائے دِ راولہ زما یارہ ملوکَ
بے تا خلاص نۂ یم یوځم لہ دردہ ډُوکَ

د زخمی زخم ئے ورځ پہ ورځ خوږیږی
ستا شیشتئ وہ شیشتئ عین د پں انګ نوکَ

محبت ئے ھسے رنګ پہ یوہ رنګ کا
چہ ھیڅ فرق د مالک نشی لہ ملوکَ[2]

پریوتلی ئے ورځئ تحت الثرئ تہ
تر آسمانہ[3] دہ بلندہ د زړۂ کوکَ

خدائے دِ[4] لاس دھغہ لندے دوارہ پریکا
چہ شیدا بلبل ئے وویشت پہ منبوکَ

دکشمشو پہ لذت بہ څۂ پوھیږی
چہ ئے خلۂ وی عادت شوے لہ املوکَ

چہ ئے نۂ وی حال احوال د سالکانو
څۂ فائدہ چہ تیل وقال کا لہ سلوکَ

نکہ څوک چہ پہ ویشتل دکلو خوږ شی
ھسے خوږ شی مشتاقان دیار لہ څوکَ

چہ بیدردہ خبر دار لہ دردہ نۂ شی
پہ زوږ[5] مہ کوہ عبدالقادرہ! کوکَ

---

خ | بہ
- ۱ زیاتیږی ۔
- ۲ مملوک ۔
- ۳ تر آسمانہ دہ بلند د زړونو څوک ۔
- ۴ خدائے دِ پریکا دوارہ لاس دھغہ لیندی ۔
- ۵ مکرہ نور عبدالقادرہ ھسے کوکَ ۔

## (۷۰)

چه په سترګو چراغ ووینی پتنګ — څو ونه مری له ژوندونه وی په تنګ
د وصال په طمع زړه ترسره تیر شی — بې جانانه ورته کال ښکاریږی درنګ
غواصان چه غواصی کا په دریاب کښې — یا سر بائیلی یا ګوهر راوړی په چنګ
نام و ننګ به صدقه د یار ترسره کا — هر عاشق چه څه حیا لری څه ننګ
هغه یار بې رنګه ډیر لری رنګونه — عاشقانو ته جلوه کا په رنګ رنګ[۱]
له یوه غمه لا خلاص نه وی بل راوړی — نن مې زړه کاوه له سترګو سره جنګ
په دنیا کښې اولیاؤ ځان مخفی کړ — په لنډۍ[۲] کښې کله ځائې شی د نهنګ
په اړخونو ئې لک شوی غشی بنه دی — نه چه کښینی بدکاران د چا ترڅنګ
د بزرګانو په مدد که چیرې تیر شې — غاښی سخت لری د وړاندې تښتو ننګ
د یار یاد لکه صیقل زړه پرې صفا کا — آئینې د د خاطر ونیوه زنګ
شاه ګدا ئې په اجل واړه برابر شی — چه له تنه ځان د تلو وکا آهنګ
چه آخر احوال د واړو سره یو وی — څه ناستې په تور و خاور و څه اورنګ
ډیرې ئې تاغوندې ځارکړی ترخپل سر دی — دا دنیا لکه مچوغنه ته ئې سنګ
څه ئې پاتو شی دوروستو څه به غم کا — فراغت په وخت د کوچ د ړو می ملنګ
شهسواران عبدالقادره تر تا تیر شول — ته هم اوس کړه پښې تینګ د یا بو تنګ

---

۱ رنګ په رنګ     ۲ په چینه کښې (خ) لنډۍ یعنی هغه دریاب چه دا کوړی په خوا کښې بهیږی۔ او نوښهر سره د نوښهر په سیند بللې شی۔ چه د خیرآباد په مقام د اباسین سره یو ځائې شی۔

## (۷۱)

تهٔ که ځله څهره نهٔ لرې بدرنګ
آئینه په کوم ګناه وَهې له سنګ

چه صبائې د ښائست بازار خوږینې ی
شمع ولې رُوپوشي کا له پتنګ

د بلبلو اوازونو د ګل حُسن
مستغني کړم نوبهار له راګه رنګ

بیا طالع راسره صلح کا پو هیږم
یو زمان چه راسره نهٔ وی بې جنګ

ځهٔ ئې رشک په سیوری کړم چه ورسره وی
تر و به څوګورم اغیار دیار له څنګ

غنیمت ګڼړه دادم، راځینی مهٔ ځه
ګوره اوس به چرخ څهٔ پیښ کا له درنګ

لاس کچکول، مُصلا مزکه درته بس دی
کهٔ کچکول، مُصلا نهٔ لرې مه ننګ

لیونې لیونې واڼی لیونی ته
لیونی د دُنیا خُوته نهٔ کړه رنګ

شپه تاریکه لار باریکه په کمر کښې
فهم کړه عبدالقادره له ګړنګ

---

ځهٔ ئې شک په سیوری کړم چه ورسره وی } خ

## (۷۲)

سحر د آواز مے غوږ یوست له بلبل
ستا خندا په ژړا کښېښتلم گل

ترمستئ ئے لا لذّت د خمار ډیر دے
ستا د سترگو مستي بهه ده تر مُل

بناسته د زمانے دنیا پرست وي
په کوخه کښے ئے پل مهٔ کښیږده بے پول

په چغلئ مے ستا په یار مینه زیاتیږي
خو د زړهٔ هومره چُغلي کوه چغل

ساقي مے چه راکوے په قهقهه خاندہ
زد کړه دا د صُراحي ئے له قُلقل

دلیدونیو په نظر کښے تفاوت وي
اوکه نهٔ وي جُز جدا نهٔ دے له کُل

په پریشانو اندیښنو خاطر پریشان شي
جمعیت موي خاطر له توّکل

چه ستا مخ وته حاضر وي گل به کوري
د هغهٔ سترگے دِ خدائے نهٔ کا بے گل

د مجلس روښنائي ته ئے، ته دِ ناست ئے
کوم نقصان دے که سبا کړه ډیوه گُل

دا دُنیا په مثال پُل د آخرت دے
تیرشه زر عبدالقادره له دے پُل

---

۱ ستا خندا مے ژړوي بناسته گل
۲ اوکهٔ نهٔ وي جدا نهٔ دے جُز له گل
} خ

## (۷۳)

هیڅ خبر نهٔ دے له حاله له احواله — غم بنادی مومی سړے له خپله خیاله

د محنت په تصور ملال غمژن شی — د راحت په فکر[1] مست ګرځی خوشحاله

بندیوان په بند بندی په خوب کښے وینی — چه بادشاه دولت یم بے زواله

تفرج کوم په باغ او په بوستان کښے — هم بالینه مے دلبر پری مثاله

بادشاه[2] پاس په تخت ودهٔ وینی په خوب کښے — چه بندی یم په زندان کښے په څوکاله

وردے تر دے خوار خسته په بند کښے پروت یم — کم قوته، بے حجته، بے مجاله[3]

هغه خوښ په هغه خوب کښے دادګیر وی — د ویښو والی حال ئے هر بے قیل وقاله

دا غافل عالم همه په خوب ودهٔ دے — په قیامت به شی واقف له خپله حاله

دا دنیا په معنیٰ شپه آخرت ورځ دے — نیک او بد به ځیله بیل شی بے اشکاله

د نسب د قبیلے پرسش به نهٔ وی — هر سړے به پوښتیدهٔ شی له اعماله

چه عمل ئے د نیکئ وی خوښی به وسی — د بدکار خلاصی به نهٔ وی له نکاله

عارفانو ځکه هسے ورته شا کړه — چه هوس د دنیا نهٔ دے بے زواله[4]

له هغې بنادئ[5] چه زړه له سرې دروی — په سل زړه بهترے غم بنهٔ دے زما لاله

د دنیا مینه په زړهٔ کښے لوئے جنجال دے
خلاص کړه ځان عبدالقادره له جنجاله

---

۱ فکرت . (خ) ۲ بادشاه پاس په تخت وُده په خوب کښے وینی (خ)

۳ بے زواله ۴ بے وباله ۵ درځنی } خ

## (۷۴)

په ګلونو آواز وړو کوه بلبل
پریشانیږی ستا له شوره له غلغل

عقل هوش عزیز ته هر څه پربندل شی — ته یو څرنګه دیر ګران ئې د مل مل

خدائے دِ نه کړه چې څوک به دِ په پښنو شی — قدم وړوبنده د رابیلو په ګل ګل

ومطرب ته مینا وائی وایه وایه — دا معنیٰ ئې پیدا کیږی له قلقل

صدقه دِ تا ترسی عبدالقادر شه
څه قدرت لری چه وائی له دلدل

## (۷۵)

دریغه دریغه یو ځل ولیدے یارخپل
چه بنکاره ے کړے ودهٔ وته اسرار خپل

نشته څوک چه دلاسے کا د غمزنو — څوک به څهٔ وبل یوهٔ ته وائی زار خپل

سرے سرے وښکے ے له مخه په لمن ځی — دیار غمه راشه ګوره لاله زار خپل

چه پرے غم غلطوم دۀ ے محرم دی — یو قلم ، دویم کتاب دریم اشعار خپل

له خزانه به څهٔ ویره څهٔ به داره کا — چا چه توئے کړی تر خزان په خوابهار خپل

په هر لوری چه ے بیائی پسے دره مم — ما په لاس دعشق ورکړے دے مهار خپل

کهٔ څوک نوم دبناسی بدی په مابنائی — چهٔ ے وران نهٔ کړ په یاد پسے روزګار خپل

---

ئې چه ے پرے نښنو (خ)

ځو دِ زړهٔ هومره ستم کوه دلبره — ما بخښلے دے وتاوته آزار خپل

لهٔ غلیمه دِ نهٔ غم نهٔ دِ وسواس کا — هر چه وسپاری وخدائے ته کار و بار خپل

مستعد ئے په لیدو نهٔ ئے غافله! — دلبر کله در بخوی له چا دیدار خپل

کل اندوه به پسے شا عبدالقادر کا
مخامخ که ورته ودری نسکار خپل

(٧٦)

په دنیا کښې کمال نشته بے زوال — د زوال اندوه کوه صاحب کمال

د هجران له غمه تریخ لکه بیلتون وو — ما هرګز لذت بیا نهٔ موند له وصال

نمر له تانه منور شو، داله نمره — څوک به بیا شت کا ستا له مخه سړیال

ستا په تللو ے ارواح درومی له تنه — یو زمان راځینی مهٔ ځه دیار خیال

چه په هجر ئے روند نهٔ شوم په وصال کښې — یار ته عجب نهٔ شم کتے له انفعال

هغه چا چه ایښے داغ زما په زړهٔ وو — هم هغهٔ وړاندے کښیښوله دسمال

له ګذر زما دیار په کوڅه وکړے — د پیغام پرے باندے ووایه شمال

زړهٔ که یو ساعت بے تانه یم بے غمه — تا دِ خدائے همیشه خوښ لری خوشال

دیر مئین په دیر ارمان په وبابیل شوهٔ — خدائے دِ رامهٔ وله بیا د غواص کال

تر هر حرف ئے بوئی د مشکو د عنبر ځی
١٠٩٧ھ
چه ثنا عبدالقادر کا ستا له خال

---

[1] لهٔ غلیمه دِ نهٔ ویره نهٔ وسواس کا (خ)

# (٧٧)

تر بنا تو لا خوا ږه دي ستا ترخه ترخه وئیل
دیر د پیس تر دعا بهه دي ستا د خلې بنیس مې ښکنځل

د واعظ په نصیحت مې مینه لا په یار زیاتیږي
سرې لمبې دي نه ډیوه ده چه به مړیږي په پو کل

ګوره اوس به ئې تر در رنګه د عاشق په وینو سره کا
په داځه شو که ئې نن د خیال نمري وانغوستل

کله ګل دې د رابیلو چه دا مسې پسین ګلیږي
دائې وچولې ښکاریږي تر پریشان پریشان وربل

په لمن کښې ئې ګلونه د بهار له سیله راوړه
په تارونو ئې زما د زړه هارونه وپېیل

نه یوا ځې زما راز و ښکو یار رنګ د مخ رسوا کړ
آه مې لا د زړه رازونه و عالم ته ښکاره ول

په زېري کښې به ئې سر عبدالقادر ورته پېشکش کا
که څوک هسې زېرې راوړي چه نن یار در ته زول[1]

---

[1] زورل (خ)

## (۷۸)

بنهٔ شول چه بنهٔ نهٔ شول هر چه بد دی له ازلَ
بد به ستا و بدو ته بد وائی لـــم یزل

هر چه په نسبت زما وما وته ترخهٔ دی
بل وته هغه ترخهٔ خوارهٔ دی تر عسلَ

کفر کهٔ ایمان دے وعارف وته یکسان دے
واره که پوهیږے دا وینا زما مجملَ

ستا فعل هرگز نهٔ دے خالی له حکمتونو
تهٔ هغه حکیم ئے چه د کار دے بے خللَ

واره موجودات ستا په هستئ باندے دلیل دی
هم د په توحید باندے ترماشی تر جملَ

هر څهٔ ته چه گوری ستا جمال به پکښے وینی
تا ئے چه په ذرهٔ د معرفت دیوه کړه بلَ

هر څهٔ ته نزدے ئے په قدرت تر هر څه خیره
ذات او په صفات کښے له همه خیرونو بیلَ

تا ته رسیدل د تا په فضل وعنایت شی
کله رسیدلی دی څوک تا وته په ځلَ

کله سیلاب آوری د خځلو په بندونو
ستا تقدیر دریاب زما تدبیر لکه خځلَ

هر چه په آخر له هغه کاره پښیمانیږے
مهٔ کړه هغه کار عبدالقادره له اولَ

---

[1] بے چرا کارے کند عاقل که باز آید پشیمانی ۔

## (٧٩)

چه دا هسې ځي له باغه په شتاب ګل
په بستر د راحت ځکه نه کا خواب ګل

د نسيم د تيز ګامئ نه معلومېږي
چه به بند دي قدم د تللو په رکاب ګل

چه زلفينې په عذارو خم په خم کا
تر هر زخم لاندې ئې واشي د آفتاب ګل

پس شا ئې لږ و ډېر د خوبئ لاف وو
د و بروکړ ستا رخسارو لاجواب ګل

چه ښکاره ورته پيښ مخ لکه خورشيد کا
هغه دم ورته پيشکش کا د مخ آب ګل

نور ويښ د سينې داغ لاله ښکاره کړي
ګني کوم د دې باغ نه دې دل کباب ګل

ګندې عطر ئې کا ښکلي په ځان پورې
هم په دا اميد ځان وسوه د ګلاب ګل

د ډېرون ويره کوه عبد القادره!
ورځ په ورځ پژمرده کيږي د شباب ګل

## (۸۰)

که غمونه د دے خپل زړګی ښکاره کړم
لوۓ هلک به همه واره په ښاره کړم

داخل هسے هجران نۀ دی په ما کړی
چه به[1] نورے آشنایۍ دوباره کړم

د حسرت د اور بڅری راښکاریږی
چه د شاه د تاج لعلونه نثاره کړم

چه پاره پاره زما د زړۀ پیشان دے
تسلی د زړۀ په ګل د هزاره کړم

که وصال مومم دیار په بے ننګۍ کښے
نام و ننګ به همه واره آواره کړم

لکه غم د بختور و له خاطره
قسمت هسے له بنا دیو کناره کړم

که صبا دیار له کوڅه نکهت راوړی
ګریبان به لکه ګل هسے پاره کړم

ساز[2] ناسان د عالم اورم غوږ کاڼه کړم
محبت عبد القادره ! بیچاره کړم

---

[1] چه به نوره آشنائۍ . . . . . .
[2] ساز ناساز د کسی ناکس اورم ځان کوڼ کړم } (خ)

## (۸۱)

چه څوک بد راسره کړه ورسره ښهٔ یم
هم په دا د ښو د بدو تور لیمهٔ یم

له هغو مے څه اندوه چه په خوئی اوروی
په خپل خوی کښے نرم[1] سرد لکه اوبهٔ یم

چه وَماته زما عیب پیشکش راوړی
دد ے هسے یار له خدایه په غوښته یم

فرښتے دِ غم زما د عصیان سنهٔ کا
کهٔ مفسد یم کهٔ ظالم یم بیا دده یم

نور زما دے، نار زما دنور و څهٔ دی
د تنګ غوندے کهٔ خیر د ځان په سوهٔ یم

په ابروے مخ پیسرهٔ شی چه نفاق کا
آئینه غوندے مخ پسین په زړهٔ تورنهٔ یم

[2]چرے نهٔ وی چه به بل مخ وَته ګوری
په هجران کښے خوښ دسترګو په واتهٔ یم

لهٔ نور چا کله ګیله عبدالقادر کړم
زهٔ خوار کړے خپلو سترګو یم خپل زړهٔ یم

---

[1] نرم سرد تر اوبهٔ یم

[2] چرے نه چه وبل مخ وته وګوری } (غ)

# (۸۲)

درپسې د خېـــــــــــــــــړی دَم
لمـا مــــهٔ دروســــه یــو دَم

ژوندی کیږم ستا په دَم
ذهٔ مړدهٔ یمهٔ ته یې عیسیٰ یې

تر وجود په عدم
د هجران غمونو خوښ کړم

بد زحمت دی د شرم
چې دارو یې هرګز نهٔ شی

تر دد بد دی بد آدم
بنهٔ آدم تر فرښتو بهتر دی

بنهٔ دولت د صبح دم
د بیدارو په نصیب شو

خاوری شه عبدالقادره!
کهٔ پری کیږدی یار قدم

## (۸۳)

که هر څو د بېلتانهٔ له غمه وائیم
خپل ژوندون مې دروغژن کاندی چه پایم

وشوستی په ښکر برات شوې دیار وصله
بې هوده دِ د دیدن په تمنا یم

په قد خم په تن ضعیف گوښه نیولې
په مثال لکه آبرو د دِلربا یم

لوئې ملک مې واره یو ځله بنا شه
ستا په مینه لکه میاشت انگشت نُما یم

د پلهٔ خاورې مې په قدر تر عنبر دی
هم په دا چه ستا د پښو خاکِ پا یم

چه حریف د خوشحالیه بیسوځنا دی
له اندوه سره دائم رفیق په دا یم

د خوښئ ئې نامحرم دِ نه رادروی
نن شپه زهٔ د یار له غمه خوابخوا یم

چه ئې واخسته پرده د گل له مخه
منت بار د احسانونو د سبا یم

توره سترګې توره زلفې ئې بلا دی
اخته کړې زهٔ هم تا په دا بلا یم

هیڅ تشبیه تمثیل ئې نشته په جهان کښې
نهٔ پوهیږم چه یار څرنګه وُستا یم

ستا په حسن سوګند خورم پخپله مینه
ترځان زهٔ عبدالقادر مئین په تا یم

---

۱ دا شعر د "خ" نسخه کښې د غه غزل سره په حاشیه لیک دے.

۲ د پله خاورې مې د عنبر په بیعه دروی.

۳ نهٔ پوهیږم یاره څرنګ دِ وستایم.

# (۸۸)

یار مے تلۀ د باغ په لور کاندی پوهیږم
ګل به حسن ځنی پوره کاندی پوهیږم

د صبا اثر ئے شته دے په قدم کښے
نغښتے ګل به د باغ خور کاندی پوهیږم

چه په دا حسن جمال له کوره ووځی
ډیر به ورانوړ پسے کور کاندی پوهیږم

چه تور مخی رقیبان ئے نواؤ شاګرد ځی
دیار زړۀ به لما توره کاندی پوهیږم

چه رقیب ئے مخ ته ګوری زۀ هم ګورم
دا کتل مے به شوکور کاندی پوهیږم

مشاطه شانه په لاس ورلره داغله
د وربل دوړ به ئے خور کاندی پوهیږم

شمع ځکه درسته شپه ژاړی له غمه
چه صبا به مجلس خور کاندی پوهیږم

هر چه غوړوی د دنیا په بنیرا زیو
زمانه به هغه سپوره کاندی پوهیږم

کله زړۀ عبد القادر په رضا ورکړ
بناسته په زړونو زور کاندی پوهیږم

---

۱ ډیر به کور ور پسے خور کاندی پوهیږم
۲ دغه او دے پس دا دواړه شعر وته د " خ " نه را نقل کړے شول۔ } خ

# (۸۵)

کله زهٔ د بېګانه عالمه زار کړم
زهٔ هم خپل آشنا له خپله لاسه خوار کړم

دمړ چا خبرې وړم دده له مخه
په عالم کښې ئې بې قدره بې وقار کړم

چه په ځنګل د ځېلو وېنو سرخرو کېږم
څهٔ منت به د دُونانو د دینار کړم

چه په وازه خله مُوندې شي مهٔ ئې وینم
کهٔ صدف غوندې حاصل دُرِ شهوار کړم

که بنادي ئې د جهان واړه زما شي
زهٔ به واړه د خپل یار لهٔ غمه ځار کړم

خاربندي مې د بڼو وکړه تو مې چاپېره
ګوندې خیال د یار په سترګو کښې ایسار کړم

چې ئې رنګ په لړ هېر کړم باد نوریږي
څهٔ اُمید به د ژوندون په نوبهار کړم

د پیوند ګیله د هیچوک لمانهٔ کا
محبت له خپله ځانه هم ویزار کړم

چه مې تل عبد القادر په در کښې پروت دې
عاقبت به ئې له سپیو سره شمار کړم

# (۸۶)

چه[۱] مې شا کړه وبنا دیو وته بنا د شوم
چه د زړه مراد مې پریښې په مراد شوم

اوس له غمه نه کړم غم بې غمه کړ ځم
راضي مند چه د ازل د ویش په داد شوم

چه مې طمع د دنیا ورځینې پرېیکړه
هغه کس که کیکاوس زه کیقباد شوم

ځان باز ید بولي کاړ ونه دیزید کا
له شیخانو ځکه زه بې اعتماد شوم

خدائې مې بیا پکښې بندي مه کړه تر مرګه
احتیاج عظیم زندان وو، تر ې آزاد شوم

هم[۲] ئې ځان له غمه خلاص کړ هم نیکنام شو
دیر میین په وړ وستي ضرب د فرهاد شوم

باد[۳] ئې بوئیں عبدالقادره ! سحر راوړ
شګفته لکه غنچه په دغه باد شوم

---

[۱] اوس مې شا کړه .

[۲] هم مې ځان له غمه خلاص کړ هم نیک نام شوم
دیر میان په وروستي ضرب د استاد شوم

[۳] باد مې بوی عبدالقادر په سحر راوړ

خ

## (۸۷)

مخ دې لکه نمر دې ورته څېر کتلی نهٔ شم
ځکه ئې د مدې ترعهده وتلی نهٔ شم

زړهٔ مې ئې غلبیل کړ د هجران په ناوکیو — راز پکښې د یار د محبت ساتلی نهٔ شم
اوس مې په معنو کښې بند هٔ مېن د سترګو کسی — کسی به د خلقو په وېل وېستلی نهٔ شم
زهٔ ئې د زنخ په چاه کښې بند لکه یوسف شوم — بې ئې د زلفینو په رسن ختلی نهٔ شم

بند ئې د حواس په پنجره زهٔ عبدالقادر کړم
زړهٔ مې پرواز غواړی وې الوتلی نهٔ شم

## (۸۸)

له دې پسه به وګل هوس ته شا کړم
نو یک لخته به غمونه د آشنا کړم

پخپل یار پسې به زهٔ شم لیونیه — د دُنیا ودانه خونه به تالا کړم
چه په مرګ سره له چانهٔ جُدا کیږی — په ژوندون به ئې له ځانه زهٔ جدا کړم
نهٔ[1] به مخ په آئینه بیا برابر کړم — نهٔ به تور اوربل په بړمنځ سره صفا کړم

[1] نور به مخ په آئینه برابر نهٔ کړم (خ) د خوشحال خان هم داسې یو غزل شته چه مطلع ئې دا ده

نور به مخ په آئینه برابر نهٔ کړم ـ نهٔ به دواړه سترګې تورې په رانجه کړم (کلیات خوشحال ص ۲۱۰)

د "پ" چاپی نسخه صرف دروېمې اته شعرونه لری ـ باقی کې مې د "خ" د نسخې نه پوره کړو ـ

نۀ به څنړے په فليل سره کړم غوړے
نۀ به نوره خوشبوئي ځان لګيا کړم

نۀ به سترګے په رانجۀ کړم نۀ به پان خوړم
نۀ به مُهر او يزان په اوربل بيا کړم

شرمنده به په ماتم کښے بنفشه کړم
په ماتم کښے به نۀ دے غونچے خندا کړم

دواړه سترګے مے د ړکے شي په خاوړو
د نرګس په دود کۀ سترګے باغ ته وا کړم

لاس و پښے مے دچل غم په وينو سرۀ شه
کۀ به نور په لاس او پښو نورے حنا کړم

اوږدې طوق حيل مے ځيل کړۀ خدائے پغاره
که ئے بے ياره پغاره دواړه بيا کړم

خال مے داغ شۀ کۀ په وچولي بيا کيږدم
سرمے پريوزه کۀ به بيا په سر سوکا کړم

ګلګون نمرې مے لبے شه چه پرے سوزم
که ئے واغوندم، هوس کړم يا هوا کړم

هتوړي مے شه وښے کۀ ئے په لاس کړم
څو لنے مے شه پائے زيب که ئے په پا کړم

که مے يار په مرګ بد رنګ کړۀ تورو خاوړو
په ژوندون به بتر تر خاوړو لا کړم

ستي تينت وکۀ له غمه ځکه سوزي
زۀ به ځان په غم تر عمره مبتلا کړم

راته وايه دا بيان عبدالقادره
چه دخوږ خاطر دمه په وئيل ستا کړم

بيا بيا وايه دا غزل عبدالقادره!
د غمژن خاطر دمه څۀ خو په دا کړم

## (۸۹)

په هر څۀ کښے نند اره دهغه مخ کړم
ځکه نور عالم غمونه کا زۀ سخ کړم

له اندوهه مے لړمون شو پړ په وينو
د بلغم په ځائے مے وينے ځي چه اخ کړم

نفس شيطان ليونے سپے راپسے شوے
مګر ستا توفيق رفيق شي چه ئے چخ کړم

خو ګرمي د محبت لرم په زړۀ کښے
نور له واړو غيرو چاړو ئے سوړسخ[1] کړم

په دا راز عبدالقادره څوک پوهيږي
چه بشکنځل د رته کوم د بانده مخ کړم

---

[1] سوړسخ يو ځائے استعماليږي - په معنی د يخ پخ - بالکل يخ (همیش خلیل)

# (٩٠)

محبت چه د مجنون په نامه یاد کړم
له غه پسه ئې دیار په وصل ښاد کړم

خاص بنده خطاب ئې هاله وما راکړه
چه د دوه کونو له بنده ئې آزاد کړم

آئینه له بده ګوهره کانړی نه شي
بیهوده و تیره دلو ته ارشاد کړم

چه مې ورکړه په مثقال په خروار اخلي
زه به څرنګ خوشحالي په هسې داد کړم

د ګنهړ له بوټي کله څوک خواږه خوري
د وفا امید به څه له بدنهاد کړم

کندې بخت مې د دلبر د زلفو منځ کا
که فلک ټکرې ټکرې لکه شمشاد کړم

تا خوږ کړې یم هم ته به مې دارو کړې
بې لتا به ونوړ چا وته فریاد کړم

چه سحر سحر راځي دیار له لورې
د غمژن خاطر دمه په هغه باد کړم

خپل مراد مې د مراد تر مېنځ حجاب شو
نور به ترک عبدالقادره خپل مراد کړم

---

ـه له غمه (رغ)

## (۹۱)

زهٔ دِ تل وینم دخون خاطر مرهمَ
بے تا یو زمان خلاص نهٔ یم له المَ

پهٔ راتلهٔ دِ لکه گُل شگفته کیږم
بر بړ راشه آشنا سبا قدمَ

دعیسیٰ پهٔ دم به مړ سړے ژوندے شو
مړ زړهٔ بیا مومی ژوندون دِ تاله دمَ

دمهجور تر زندگیه مرگ بهتر دے
له ستیٔ نے ستی کیږی نهٔ ده کرمَ

لکه واړ دبنا دیٔ حیٔ دغم هم دړ وی
پهٔ محنت کښے زړهٔ هرگز مهٔ شه درهمَ

دیار غم پهٔ معنیٰ غم نهٔ دے بنا دی دهٔ
ما دِ نهٔ کاندی خدائے خلاص دیار له غمَ

دڈنیا دولت پهٔ مثل لکه باد دے
کله مخ ~~کله~~ کله شټ کاندی له دمَ

نهٔ خونبی کرم د احمق سړی له مده
نهٔ ے زړهٔ مومی اندوه ددهٔ له دَمَ

د زلفینو تر حلقو د عذار وینم
که نسرین دِ دے پهٔ زلفو کښے صنمَ

مگر خدائے تعالیٰ عبد القادر چه پهٔ پیغوړ به
د زړهٔ مینه کا له خپله یاره کمَ

---

ے د زلفینو تر حلقو دِ مخ بنکاریږی (خ)

# (۹۲)

چه نیولے ئے د مینے په تالان یم
ځکه هسے رنګ بهتر تر درست جهان یم

عاقبت به د یوسف غوندے عزیز شم
چه بندی دیار په چاه زنخدان یم

دخپل یار سروسامان واړه زما دی
غم[1] ئے کوم دے که بے سرو بے سامان یم

چه پرتوے د ښه مخ راباندے وشو
لکه لعل قیمتی د بدخشان یم

دحیرو په کاغذ د سرخی میم دے
که ئے خله ده ؟ وتحقیق ته ئے حیران یم

ستاله لاسه ګل داغونه راته ښهو دی
مستغنی له تماشے د ګلستان یم

خدائے مے خپل باڼه د دوو سترګو نشتر کړه
که[2] بے تا د بل و مخ ته نګران یم

که د مزکے غوندے کوز په تواضع یم
په همت تر واړو پاس لکه آسمان یم

دعوامو تر نظر لکه ګدائے شوم
وخاصانو ته شاه د کون فکان یم

نا آشنا د نا آشنا په قدر څه زده
که ونور خلقو ته سپک ویار ته ګران یم

نادانی تر ناپوهئ ئے راته ښه شوه
نه پوهیږم چه هښیار یم که نادان یم

یم وئیل په طریقت کښے مشرکی ده
دیم یم په قافیه راوړل پښیمان یم

دسخن خوبی همه لرم موجود ه
زه عبد القادر محتاج د سخندان یم

---

[1] په دا څه شو که بے سرو بے سامان یم } (خ)
[2] که بے تا به وئیل مخ ته نګران یم }

## (۹۳)

دا گمان له دله ووباسه همدمَ
چه بے تابه سترگے وچے کړم له نمَ

په ژړا ژړا مے لوند د سر بالښت شي
چه مے وښکے موج وهي د زړهٔ له یمَ

په دا حال مے که گذر په چمن وشي
مستغني به کړم گلونه له شبنمَ

که په ورځے زیست روزگار کوم له خلقه
درسته شپه مے سرېکار وي ستا له غمَ

چه ښکارهٔ په ډیر وگړي کښے ځان سیزي
راښکاره شوه دستۍ اندیښنه کمَ

رگ او پلے مے خالي نهٔ دي ستا له درده
ډېرهار غونډے خندا کړم له عالمَ

لکه کانړے هر ذره له اوره ډک دے
هسے سرتر پایه ډک یم له المَ

لا یو داغ مے د زړهٔ روغ نهٔ وي بل کښېښ دي
آه فریاد د جدائۍ ئے له ستمَ

خلاص به نهٔ شے په ژوندون عبد القادره!
اندیښنه ئے شوه د تا له عمره سمَ

## (٩۴)

چه مئین په پری وَشه جانانه یم
ځکه سر لکه مجنون په ویرانه یم

نهٔ خپلوی له چاکوم نهٔ مے څوک خپل دی
په عالم کښے له عالمه بے ګانه یم

ظاهر بین مے په ظاهر صورت غلط شو
په باطن په خاوړو پټه خزانه یم

ځان مے پاسه د باد شاه د سر په تاج دے
پریوتلے په ډیران کښے دُرِ دانه یم

د دے بزم د مجلس ګرمی په ما ده
هم ساقی یم ، هم شراب، هم پیمانه یم

په سینه د خپل مقصود په لور شوریږم
په مثال د وزر سوی پیمانه یم

خرابات دِ خدائے و دان لری تر ډیره
په وئیل د دهٔ له فیضه رِندانه یم

بے نائی کله آواز خیژی له نیه
واړه عشق ئے وَیوی زهٔ بهانه یم

په ژوندون عبد القادره کوړ ویران کا
ډیر په دا خصلت مئین د دیوانه یم

# (۹۵)

چه تل هسے په هوس په بېغمی یم
اقرار شوے د خپل عقل په کمی یم

آدمیت کۀ په سیرت وو لما لاړ شو
آدمیت کۀ په صورت دے آدمی یم

کۀ په فضل ے کاړ وسپاړے غم نشته
کۀ په عدل ے سپاړے جهنّمی یم

د هجران په لمبو سوے یم فریاد کړم
ما معذور لرے عالمه اسمی یم

اهرمن چه لاس و روړی ګټے سوزی
بادشاه شوے زۀ د فقر په غمی یم

د معنو په ملک فارسی عربی نشته
کوم نقصان کۀ عرب نۀ یم عجمی یم

کله زۀ عبدالقادر د شعر لاف کړم
مرثیے د تللو وایم ماتمی یم

# (٩٦)

محبت زما بادشاه زړۀ ئے غلام یم
سرفرازئے په خدمت په صبح وشام یم

په یوۀ کاته ئے سل شرفه موسم
ځکه هسے تر هر چا بلند مقام یم

چه په بڼو ئے دمستئ چرخ څرخیږی
امید وار ستا ساقی دهغه جام یم

یوه ورځ به مے په حال ترحم وشی
په امید دصافو مئو دُرد آشام یم

تر کول دخپل خواهش کمال دعشق دے
رضا مند دعاشقئ په کام ناکام یم

اوم کباب داور په تاؤ ژړا فریاد کړم
کۀ دعشق له اوره آه وکړم لاخام یم

چه شفیع مے دګناه خیر الانام دے
غم مے نشته کۀ هر څو شر الانام یم

هر غزل مے مبرا دے له تکلیفه
په ساده پښتو وئیل شیرین کلام یم

دروغژن ورته خپل ځان نیولے نۀ شی
په رښتیا عبدالقادر تیرۀ صمصام یم

## (۹۷)

په خاطر کښې هومره سوز لرم که آه کړم
اور به پورې په خرمن د مهرو ماه کړم

عشق خلعت د غلامۍ د شاهۍ راکړ ‏ ‏ ‏ له اوله ئې بنده آخر ئې شاه کړم
و مخ نوري ئې لکه نمر د مخ حجاب شو ‏ ‏ ‏ ښکلي مخ ته ئې نظر په کوم نګاه کړم
هیڅ عجب په باد کښېبول د جهان نه دی ‏ ‏ ‏ چه نظر پخپل وجود پخپله ساه کړم

هدایت به زما څرنګه څوک کاندی
چه په سمه لار کښې خپل دلیل ګمراه کړم

## (۹۸)

تا چه زلفې په سپین مخ کړې خم په خم
په خاطر باندې مې بیان دې غم په غم

عاقبت عاشق معشوق، معشوق عاشق شی ‏ ‏ ‏ ښه چه زه او ته په عشق شو سم په سم
په معنیٰ کښې سخاوت نه دے امساک دے ‏ ‏ ‏ هر چه ورکړه ډیر په ډیر کا کم په کم
لکه حُسن د دلبرے روز افزون دے ‏ ‏ ‏ هسے عشق زما زیاتیږی دَم په دَم
که د زړهٔ دے چه د زړهٔ غنچه د وا شی ‏ ‏ ‏ وَروه له دواړو سترګو نم په نم
په هر ځائے باندے چه کښېنم لاله زار شی ‏ ‏ ‏ چه مے[1] ډیر له سترګو دړومی دَم په دَم
زما دَم دیار له دمه وابسته دے ‏ ‏ ‏ چا وے[2] دا چه تازهٔ نشی دَم په دَم
هم په ویر هم په سرود عبد القادره! ‏ ‏ ‏ کوړ په کوړ د عشق نارے دی چَم په چَم

---

[1] هسے ډیر له سترګو دړومی نم په نم
[2] چا وے دا چه تازه نشی دم په دم
} خ

## (۹۹)

چه منظور د یار صفا جبین لرم
ذره په دا له نیک او بده بېین لرم

کام ناکام زما په طبع برابر شو — په ترخو سره تل کام شیرین لرم
د حسد له خویه هسې رنګه خلاص یم — عار راځي چه له شیطانه کین لرم
په وېیل وچولي غم یوسم له غمژنو — که هر څو نه خاطر حزین لرم
په ظاهر و ظاهر بین وته مقیم یم — په باطن براق د تللیو زین لرم
د دریزي کرم په صفت د یار د لعلو — کلام ځکه هسې رنګ رنګین لرم
نسترن د باغ زما په سترګو خار دې — چه په کور د یار د مخ نسرین لرم
په خیال خیال په شوه ځي په سترګو سته — تل په دا دعا آمین آمین لرم

که په بخت عبدالقادر نازېږم بناځي
چه د تا غونډې یار من نازنین لرم

---

ئ سقیم (خ)

## (١٠٠)

چه له حاله د وګړی خبردار شوم
له همه وُ په زړهٔ بیارته په واروار شوم

ورځ په ورځ مے له جهانه زړهٔ سیرېږی
په دریاب کښے له دریابه همکنار شوم

چه پخوا عمر به ما پرے افتخار کړ
په هغو وارو کارونو شرمسار شوم

ځان مے خلاص کړ د دلبرو له نازونو
بس کړه ډیر مے د نازونو خریدار شوم

په تندی ئے لاس ځکوم له شفقته
اوس مے ښکلی لکه زوئے زهٔ لکه پلار شوم

معنوی بنائسته غوارم که ئے مومم
صورتی د زړهٔ زحمت وو ترے ویزار شوم

چه بے غمه نشته څوک عبدالقادره!
ښهٔ چه زهٔ په غم د مینے ګرفتار شوم

★ ★ ★

## (١٠١)

عجب خوښ په خوب ؤده ؤم د آدم
نه مې غم وو د بنادې نه د غم

یا وحوش وې یا طیور یا بل اشیا وې
کاش که زه نه وې پیدا بني آدم

یا مې مرګ د هلکوالي وې چه خلاص وې
وو مې نه لیدې دا هومره ډېر اَلم

نه اول شوم، نه دویم شوم، نه دریم شوم
څلورم بویه د حق فضل و کرم

چه مخلوق ئې کړ آدم له ما وطنه
روح ئې کړ له خپله روحه پکښې دَم

له اوله ئې مسجود د فرښتو کړ
په تکریم د کرّمنا[1] شو مکرم

و جنت ته ئې روان په ډېر اعزاز کړ
پرې پریوان ئې کړ انواع نعم

بیا[2] شیطان ئې وسوسه وروسته زړه ته
په وئیل ئې د حوا وخوړ غنم

د جنت جامې ئې والوت له تنه
بې بهاسه شو بربنډ په هغه دَم

له جنته ئې بېرون په درد او دوک کړ
د عطي آدم ندا شوه په عالم

دا د زړه له سوزه دا ناره وهله
هم ئې دا ناره د زخم شوه مرهم

چه نسبت ئې کړم وتاوته ویرېږم
څو هم ما وکړ ځان باندې ستم

څه شیطان، څه نس، څه زړه، څه زمونږ فعل
وې نه شي زور ورته وئیل سم

هیڅ حجت له زوره وړ و سره نه شي
کرم ئې ته عبدالقادره یارنا کرم

---

[1] وَلَقَدْ کَرَّمْنَا بَنِیْ اٰدَمَ الآیه یعنی مونږ عزت ورکړو بني آدم ته۔

[2] بیا شیطان وسوسه وروسته وزړه ته (غ)

## (١٠٢)

نهٔ پوهېږم چه په ويښ يم، که خواب وينم
چه دا هسې رنګ کاروونه عجاب وينم

پلار و زوئے وته خبرے په نرمئ کا / زوئے و پلار وته په قهر و عتاب وينم
په اُمېد د مال و ملک چه ور ميراث شي / د مور پلار له مرګه زوئے کامياب وينم
چه مقصود ئے ترمنځ ووځي غيلمان شي / محبت په خپل مقصود د احباب وينم
واژګونه چارے په دم کښے ليدے شي / محتسب کره شيشه د شراب وينم
په ښئ لاس پياله د ميو مئے نوشي کا / په کينړه لاس کښے ئے د فقهي کتاب وينم
که قاضي دے که مفتي که خطيب دے / د همه و کره چنګ و رباب وينم
تو لا تېرا طمع حسني يو وړه / عالمان د کافرانو په باب وينم
که څوا فضل په علم په تقوىٰ وو / اوس ئے فضل د دُنيا په اسباب وينم
د دوزخ په لور که تله په معصيت شي / تر کافر د مسلم تله په شتاب وينم
ښئے خوږے صافے اوبهٔ په کوړ کښے نهٔ څښني / تشنګان روان په لور د شراب وينم
که څوا حاکم شبان خلق رمه وو / په دا دور ئے ليوهٔ يا قصاب وينم
لور په لور ئے کړے د ظلم لمبے بلے / ښکښے زړونه د مظلومو کباب وينم
هيڅ ئے نهٔ زده چه انجام به ئے په څهٔ شي / په بديو کښے د خلقو جواب وينم
شکر شکر چه لا دَر د توبے وا دے / د مشرق په لور ختل د آفتاب وينم

سامعان ئے آمنّا و صدقنا کا
ستا ګفتار عبدالقادره! صواب وينم

## (۱۰۳)

څه شوکه ظاهر لب خندان لرم
زړه د جدائې په اور بريان لرم

تور لوګې د ځلې وښکې د سترګو سرې — دواړه په دا حال بانده ګواهان لرم
سيم وزر مې زړه د محزغني يم پرې — لعل او دُر د يار لب و دندان لرم
زړه مې د دلبر د جانان دې ځان — زه خوله جهانه زړل وجان لرم
لږ قهر چه وکړې هم او به شم ترې — ګله زه ناتوان د قهر توان لرم
څو پکښې پراته دي د يوسف غونډې — ډک له کښليو چاه د زنخدان لرم
هومره پرتې نه دي چه يې وشمارم — ستا ګيلې په زړه چندان چندان لرم

کيست که اين حلقه بدر منير سند
خوار ختک يم سر په دا آستان لرم

* * *

## (۱۰۴)

شکر شکر چه نهٔ خان یم نهٔ امیر یم
نهٔ بادشاه د ولایت نهٔ ئے وزیر یم

نهٔ قاضی یم نهٔ مفتی نهٔ محتسب یم — چه د بډے پوړ رشوت په زړه وګیر یم
نهٔ مشرف نهٔ کروړی نهٔ ئے فوجدار یم — نهٔ عمّال[1] د چا د ملک او د جاګیر یم
نه دعوی د ملایئ نهٔ د شیخئ کړم — نهٔ وئیل کړم چه صوفی صافی ضمیر یم
نهٔ بنګی نهٔ شرابی نهٔ قمار باز یم — نهٔ تهګی کړم نهٔ رهزن نهٔ غل کاسیر یم
توانګری د زړهٔ لرم دُنیا ئے نشته — سرمایه زکواة ئے نهٔ ووځی فقیر یم
قلندر یم په ساده سپینه جامه کښے — نهٔ په فکر د درم او د دنانیر یم
په ظاهر خندا هوس کوم له خلقه — په باطن کښے ګرفتار دځان په ویر یم
قناعت صبر هر ځائے راته ګلزار کا — ګویا ناست لا په کابل لا په کشمیر یم
لر دیدن دکښلیو کړم بنهٔ آواز اروم — خدائے ئے م وُبخښه اقرار پخپل تقصیر یم
کهٔ کړم را باندے کا جنت ے ځائے د ے — کهٔ حساب را سره کا اهل سعیر یم
خوشحالی ے په دیدن دکښلیو کیږی — چه ئے نهٔ وینم پوډم پسے زهیر یم
په آواز ے ئے د زړهٔ پرهار ګاڼږهٔ شی — مئین ځکه د رباب په بم او زیر یم
په هر ځائے چه قدم ایښے بنا ګسته وی — مینه دار په هغو خاوړو ترعیب یم

خدائے د روغ عبد القادر کا حُسنی مهٔ کړه
چه زخمی د ځیل مئین د عشق په زتیر یم

---

[1] عامل (غ)

## (١٠٥)

مهر زما دخپل صنم مهٔ شه زما له عُمره سم
مهٔ شه زما له عمره سم مهر زما دخپل صنم

غواړه ګرځه عرب عجم نشته زما دیار نشان
واړه په ما دیار ستم شهد و شکر نبات لګی
مژده په یاسمن قدم څرخ دِ په کښېنلیو پښو مهٔ شه
زلفې په مخ کړه خم په خم کښېنه وماته مخ په مخ
عمر ګزر کا دم په دم لویه ولجه دے دا زمان

نشته زما دیار نشان غواړه ګرځه عرب عجم
شهد و شکر نبات لګی واړه په ما دیار ستم
څرخ دِ په کښېنلیو پښو مهٔ شه مژده په یاسمن قدم
کښېنه وماته مخ په مخ زلفې په مخ کړه خم په خم
لویه ولجه دے دا زمان عمر ګزر کا دَم په دم

وُکړه په خوار خټک کرم شمارے په کُشته ګانو کړه
شمارے په کشته ګانو کړه په خوار خټک کرم

★ ★ ★

## (۱۰۶)

پر یمن دئ چه ژاړم شپه او ورځ لکه باران
ګل غوندے ژړن کا په وار وار کښلی یاران

بنهٔ دی پوهیدلی چه آخر به خاوړے کیږی
ځان په ژوندانهٔ کا تورے خاوړے خاکساران

تاچه[1] پخپل عمر شپه د درد لیدلے نهٔ دہ
ځکه دِ خنداشی چه فریاد کا افګاران

مرګ ئے رغیدن دے د دارو زیرمه ئے مهٔ کړه
نوښ په بیمارئ دی ستا د سترګو بیماران

په[2] شکر د عزت چه ئے عزیز پخپل دولت کړ
مهٔ شړه له دره په ذِلّت سره خواران

وخت دے که څهٔ کرکړے بیا به واے وار به تیر وی
تل به هسے نهٔ وی ستا د عمر باکاران

کله پخپل ځان باندے پیرزو د سری بد وی
څوک شوله ازله نیکو کار څوک بدکاران

هر چه یار ئے نهٔ وی پخپل کور لکه غریب وی
ناست پخپل وطن کښے مسافر وی نیست ګاران

هیڅ ملامت نهٔ دے که فریاد عبدالقادر کا
هر[3] اندے وی په زړهٔ دیار د زلفو ښاماران

---

۱ تاچه پخپل عمر هرګز درد لیدلے نهٔ دے (خ)

۲ دا شعر د "ب" په چاپی نسخه کښے نشته - د "خ" نه مو رانقل کړو.

۳ ګیا ئے دی په زړهٔ دیار د زلفو تورماران (خ)

## (۱۰۷)

هیڅ عاشق به ترے بیا نهٔ مومی امان
عشق پیغوړ دی سره دواړه توامان

چه به ستا په نصیحت ویارته شا کړم — له زړهٔ لرے کړه ناصحه دا بیان
چه د کبنلیو له دیدنه ماړهٔ نهٔ شو — هر چا وړے دے وګوره ته دا ارمان
بناسته دمزکے مخ دے په خوبا نو — کهٔ په ستوړو حسن زیات دے د آسمان
نن ئے وے چه "صبا راشه خلهٔ به درکړم" — مددګاړ شے بخته! بیا مهٔ شه پښیمان
کهٔ به وُشکوے لمن زما له لاسو — په قیامت زما لاسو نه ستا دامان
تیروی تیر راتلونی نهٔ وی لا راغلی — عاقلانو ته دُنیا شوه دَ ارمان
د سامان دسر انجام فکر ئے نهٔ وی — نهٔ سامان د بے سامانو دے سامان

دیار درد عبد القادر ته دهغو دے
چه هرګز ئے فکر نهٔ وی د درمان

---

لے عاقلانو ته دنیا شوه دا زمان (غ)

## (۱۰۸)

بناګُسته چه په خندا کاندی د دندان سپین
تو یوی له سینې خلې دُر و مرجان سپین

تر سپین مخ یې تورې تور لکه لونګ شی
که هر څو را میل چا میل دی د بوستان سپین

کهٔ د زلفو په سیاهئ جهان تیاره کا
په جبین لکه سبا کا بیا جهان سپین

ملاحت یې وو په مخ کښې ستا له مخه
که هر څو په مخ یوسُف وو د کنعان سپین

په جمال به یې دیدار ستر ګې بینا شی
که یعقوب غوندې کا کسی په هجران سپین

سفیدی نهٔ شی د ذرهٔ په سینه ږیره
په سپین والی به د نمر یو نشی ځان سپین

تور بوړا دې په کمال ناست عبد القادره!
که یې ایښې دې تور خال په زنخدان سپین

---

ٔ دا شعر د "پ" په چاپی نسخه کښې نشته - د "خ" نه مو را نقل کړو -

## (۱۰۹)

شکر شکر بیا یو ځائے شـــول حبیبان
دوسیاه شول په دامنځ کښې رقیبان

ساقي دریغ دپیالے نۀ کا له چا نه — ترے محروم شول خود په خود بے نصیبان
په منبر باندے به سر ملے شي بے لے — که یو راز دعشق بیان کا خطیبان
چه په زړګے مے ګټے زدی ګټے سوزی — زما رنځ به څرنګ موږ مي طبیبان
نن باغبان د باغ ګلونه واړه تول کړه — د زړۀ سود به په څۀ کا عندلیبان
لیبیان د دُنیا واړه لیـــوني دي — لیونیو ته ښکاریږي لبیبان
د ړوندون جهان به غرق د فناسین کا — که په ځان ئے نوح نبي شي کشتي بان
د دُنیا په ودانئ عبث مشنود کړے — عمارت به سرائے کښې نۀ کا غریبان

د سوارئ زیرمه کوه عبـــدالقادره!
په هر لوري ډیر ودے کــا رقیبان

★

(۱۱۰)

نمرسپوږمۍ مزکــه آســمان
ځائے په ځائے په ځان حیران

اوبهٔ سروهی په کانړ یو
شپه او ورځ کاندی افغان

لړمون سوے د آتش د ے
باد هم ګرځي سرګردان

په نښان ئے موندهٔ نهٔ شی
څوک به مومی بے نښان

(۱۱۱)

نهٔ پوهیږم مخ ئے ګل دے یا لاله دے یا سمن
یا جل شوی په یو ځائے ګل لاله دی نسترن

دا ئے خُلهٔ ده که غنچه ده، که میم کښلے په سرخئ دے
دا ئے سترګے کهٔ نرګس دی که هوسئ دی د ختن

دا ئے زلفے که سُنبل دی که ښامار په چندنړ زورند
دا هلال دے که لیندهٔ ده که آبرو د سیمین تن

دا ئے شونړے دی کهٔ لعل یا یاقوت دی که مرجان دی
سیب د ے داکهٔ ناشپاتئ ده، د بخت ستوړے کهٔ د تن

داوښتهٔ دی که ئے ملا ده، که زما د خاطر فکر
دا ئے قد کهٔ صنوبر دے، کهٔ چنار سرو ده چمن

داشراب دی په پیاله کښے، که باده د ځیګر وینے
دا کباب په اور ورتیږی، که د زړهٔ مے شی سوختن

داشناشی د ګوهرو کهٔ د مښکو د عنبرو
کهٔ صفت عبد القادر کا د چل یار نازک بدن

## (۱۱۲)

دنیادار په سپینو بولي یا په خرو
ته پرے وړے هومره مینه کوے ترو

عاشقان دیار په مخ په شونډو مست وي — مستغني دي د جهان له سپینو سرو
زما یار په خوب وړده دے چه ویښ نشي — په پیاله کښې ساقي مې تویوه ورو
عام عالم ورته بے بال و پر ښکاریږي — لامکان ته عاشق ځي د عشق په پرو
توکل زما په خدائے تعالیٰ نهٔ په طاعت دے — شیخه! تا زده، ستا طاعت زده، ستا اسرو
په شامت د دے سړیو باران پرېږده — شکر دا چه اور نه وري له اورو
بے عمله به هیڅ بنهٔ په چا ونهٔ شي — نهٔ په ورونړو، په پلرونو نهٔ په ترو
چه د خدائے تعالیٰ په یاد مشغول سړے هغه دے — دا غافل خلق حساب دے په خرو مرو

نصیحت وائي همیش عبدالقادرؒ
مړدکان که څوک مني، له ادیرو

★ ★ ★

## (۱۱۳)

غره مهٔ شه د دولت په بام ختو
هر زمان ئې ویره کړه له پریوتو

ډیرئې هسک کړل بیائې وویشتل په مزکه
هسکول د چرخ په نیت دی د ویشتو

له اوله پیدا پر د محبت کړه
کهٔ آسمان ته قصد لرې د اَلوَتو

چه ئې مینه د ښهٔ مخ په زړهٔ کښې نهٔ وی
د مغو مخونه نهٔ دی د کتو

ماتهٔ ځان د دهٔ له سپیو سره مل کړه
یوه ورځ ئې راته ونهٔ وې چه تو

چه ړند ئې نهٔ شوې د یار په جدائی کښې
خوښ یم اوس د دواړو سترګو په وُتو

تونګری په قناعت شی ، نهٔ په زرو
سفیدی بویه د زړهٔ ، نه د ویښتو

خان[1] خوند کړه تر فارسئی عبدالقادره
کهٔ پخوا وه ترخه ژبه د پښتو

---

[1] مطلب خوشحال خان ختک دے

## (۱۱۴)

دا چمن به تل زيبا نهٔ وي په ګلو
نهٔ به تل بانده غوغا وي د بلبلو
نهٔ به تل سروے سرسبزه وي په باغ کښے    نهٔ به تل چنار زړ ويش کا په منګلو
نهٔ به تل آبشار دا ښے په فرياد وي    نهٔ به تل د باد نڅا وي په سُنبلو
نهٔ به تل نارے سُورے وي د مستانو    نهٔ به تل ښے په جوش وي خُم د مُلو
نهٔ به تل عبد القادر موشګافي کا
نهٔ به تل جهان خوشبو وي په کاکلو

## (۱۱۵)

چا موندلے دے نارے وهي هُوهُو
څوک طالب څني پوښتنه کا کُو کُو؟
عرشيان ئے پرسش کا له فرشيانو    فرشيان ئے هم ګرځي په سُوسُو
د دويئي خبرے مه کوه مطربه    په نغمه کښے يو يو وايه نهٔ دُو دُو
چه راغلے له عدمه دے وجود ته    آواز يو تر بل کوي چه به څو څو

د څوانئ شاهين ياغي شو رابه نهٔ شي
که فرياد عبد القادر کاندي تُو تُو

## (۱۱۶)

ستا لیانو بازار سوړ کړ د شکرو
هم د غاښو قیمت کم د مرغلرو

نهٔ په زور پېلاس کښېوزي، نهٔ په زرو   خدائے دِ نهٔ کا څوک مئین په زوروړو
مار خوړلي په فریاد پورے خندا کا   دهٔ لا درد لیدلے نهٔ دے د بنسبو
تولول، کښېبول د زړو ښځے کا بندي   ورکول بازل ئے خوي خصلت د نرو
چه ژوندون ئے وابسته په سرو لمبو دے   عاشقان دي په معنیٰ د سمندرو
مخ ئے گنج دے دواړه زلفے ئے ماروته   سربازان به گنج اخلي د اژدړو

چه له یاره سره واصل توانګر هغه دے
خدایا! شمار عبدالقادر کړه له تونګرو

* * *

## (۱۱۷)

هم له بدو سره ښهٔ کړه هم له ښو
د ښو بدو له غمونو شه په څښو

خاکساري لره کول دي د خودۍ سے
نهٔ چه کېږې خاکساري په خاوړو مښو

په جهان چه زلزله د حوادث شته
تر قصرونو جونګړۍ ښے دي د وښو

د خېمو مېخونه وکاږه فراشه
فریادونه درته کا جرس د کښو

مرګ له تنده، په مذهب زما بهتر دے
نهٔ ژوندون د دُون همت په اوبو څښو

خرخښے دسر له سره ژوندون را کا
زهٔ قربان شم یاره ستا تر خرخښو

کشکے زهٔ ږد د وږدو زلفو تار وے
چه همیش مے ایښے سر وے ستا په پښو

هسے رنګ تو بره مے مات دے په خاطر کښے
چه عاجز دے طبیبان شول له وکښو

دخیل زړهٔ په تخته کښه عبدالقادره!
په کاغذ د عشق ویل نهٔ دي د کښو

# (۱۱۸)

راته څۀ وائې چه "وایه زړۀ دِ چیا یوړ"
بې تا څوک دی ما لیدلی وایه "تا" یوړ

په ژړا ژړا مې زړۀ له کښلیو خلاص وو
په خندا خندا ئې نن راڅخه بیا یوړ

چه د عشق جمال جلوه وکړه عالم ته
تر مُقرِّ ئې د منکر خاطر پخوا یوړ

دلبرئ ته په بنګاړه درځم زاهده!
بیا به وائې چه ئې زړۀ زما په غلا یوړ

شیرین ځان شیرینې ځار تر خپل مئین کړو
په دا کار ئې ګوټې له کښلیو د وفا یوړ

له اجله ئې هورې خلاصې وُ نه شو
ځان ادریس له مزکې پاس کۀ په سما یوړ

د باد وُړیو څوک پو بشتنه کا چه څۀ شو
بیا به بخت په لاس کښېوزی چه هوا یوړ

چه دُنیا ئې پخپل ځان باندې تنوړ کړه
وفلک وته ئې ځکه مسیحا یوړ

په بوسه مې ئې خاطر چرې بنۀ نۀ کړ
دا ارمان عبدالقادر لما پخوا یوړ

## (۱۱۹)

مهٔ شه خوښ د بادشاهئ په تخت ختلو
همیشه ئې غم کوه د پریوتلو

هغه لیندے ورته ناست، لیندۀ څکولے
چه هاتی بې سرو تیر څی له ویشتلو

هر دنیا پرده به سکور دِتا په ځان شی
دا چه اوس ئې خوښی کړے په اخستلو

چه ئې اوس کړے په مظلوم رډے رډے
غافل مهٔ شه د دیو ستر کو د وتلو

چه پیشه ئې همیشه دِل آزاری وی
دهغو مخونه نهٔ دی د کتلو

ځکه تل کړے په زر دوزو جامو کبر
چه غافل ئې دکفن له اغوستلو

د اجل دستور و تاخت ناګهانی دے
په هیڅ کور ئې نهٔ خلاصیږے له ننتلو

چه د باز وزر دِجور و وښکار دِنهٔ کړ
دکور پرنهٔ وی قوّت د الوتلو

هغه زړهٔ عبدالقادره چه مُرده وی
په ګوګل د ننه نهٔ دے د ساتلو

## (۱۲۰)

راشه ګوره ننداره د فاسقانو
دم وهي د خدائے د خاصو عاشقانو
خپل کردار ئے شاهدي لي په دروغو      که ئې په خله کاندي ويل د صادقانو
په کردار اهل شمال ور ځني عار کا      په ګفتار کښے سبقت کا تر سابقانو
د عصيان بيمار رمق لري په تن کښے      الغياث د ديو زخمونو، حاذقانو
چه ګناه په خندا کا اثر ائے نه وي      دا خصلت دے د همه منافقانو
په ليدو به د لا کله مشرف شي      اشتياق شو هر ګور ډير د شايقانو
مرګ ئے سل ځله بهتر له حاضرانو
دے بنده عبد القادر له آبقانو

## (۱۲۱)

ترے قربان شه سل بنا دئ د بنا د منو
ربه! مه وړه خپل غمونه له غمژنو
هر آشنا چه زړه رايادکا زما مرګ دے      زه فراق ځيګر پاره کړم د مئينو
د بيدردو ته دعا کړم که دردمند شي      خدائے درد را ښکاره مه کړه د درمنو
په وار وار به باغ خالي شي له ګلونو      نن بلبلو دا آواز کا وو په ونو
بدان واړه د بدانو صحبت بد کړل      ډير پمن دي پمن شوي له پمنو
ډير ګردونه دي سواره ځني ښکاره شي      د خوارئ ئے نظر مه کړه په ګردمنو
و معنو ته فهم کړه عبد القادره!
چه نظر کړے د جهان په اوبو پلنو

## (۱۲۲)

بارے شکر چه دهر څهٔ نن فراغ یو
مخامخ له یاره ناست په لاس ایاغ یو

که مو عمر د چمن له ګلو کم دے — د لاله غونډے سرخرو د زړهٔ په داغ یو
خزانه د قناعت راته حاصل ده — تر شاهانو لا په کبر په دِماغ یو
تعلق لکه نسیم ورپورے نهٔ کړو — ننداره لره راغلی د دے باغ یو
نن ٔ زمونږ جونګړۍ هیار په مخ دڼا ده — مستغنی له روښنائۍ ئے د چراغ یو

کهٔ ظاهر مے خلق ګڼړ وینی له خلقه
په باطن عبدالقادره! سر په داغ یو

## (۱۲۳)

مهٔ دِ وینم بیا سی په سترګو تور و
زهٔ په تابانده میٔن یم، تهٔ په نورو
هیڅ حرمت ئے لکه حق دے پخائے نهٔ کړے — میلمه شوے وو یوسف په کور د کورو
په بنه خوئ به څهٔ پروا کړم له بدخویو — قیمت کم نهٔ شو د دُر په اوبو شورو

---

ٔ نن زما جونګړۍ دڼا دیار په مخ ده (خ)

## (۱۲۴)

چه آخر ځنې شلوه شي په ارمان زړهٔ
څوک به څهٔ لره تړي په دا جهان زړهٔ

د دې باغ له ګلو بوټیس د وفا نهٔ ځي
بې[۱] ناحق بائیلی په دویو بلبلان زړهٔ

چه په خیال د یار د زلفو پریشان دے
جمع مهٔ شه تل دے وُسه پریشان زړهٔ

سخت بے رحمه بے پروا لکه چه ستا دے
په جهان کښې به بل نهٔ وي په دا شان زړهٔ

په هر ځائې چه ئې دلبره هم هور دے وی
په کوګل کښې ساقي ګله بیدلان زړهٔ

خدایا! څهٔ دِ په نادان کښلی مئین کړم
چه بے جُرمه بَدَوي په هر زمان زړهٔ

قرب[۲] او بعد، وصل هجر ورته یو شي
چه ئې بیا موندهٔ مکان په لامکان زړهٔ

د دوزخ آتش دے سل ځله قبول دے
خدائے دے مهٔ کړه د هجران په اور بریان زړهٔ

بنګ شراب، سرود کوه عبدالقادره
خو یو مهٔ کړه آزرده د مسلمان زړهٔ

---

۱ بې ناحق په دې بائیلی دا بلبلان زړهٔ
۲ قرب وبعد وصال هجران به ورته یو شي
(خ)

## (۱۲۵)

چې په ښکلیو مبتلا شي سکه زړهٔ — همیشه په واویلا شي لکه زړهٔ
سرګشته حیران پریشان ګونه بدرنګه — خوارخسته ترمجنون لا شي لکه زړهٔ
دهر چا ناسازې ورې په تورې د مینې — خانمان به يې تالا شي سکه زړهٔ
نهٔ به آه نهٔ به فریاد نهٔ به ژړا کا — ګل روزګار به يې په غلا شي لکه زړهٔ
محبت به يې پرې نږدې وماتړي سته — بې ریباره به پخلا شي سکه زړهٔ
لا به شي تر دا بد تر عبدالقادره!
چې اخته په دا بلا شي سکه زړهٔ

## (۱۲۶)

چا چې بایللو د دلبرو په ور بل زړهٔ — پریشانی يې کړه په بخره تل دخپل زړهٔ
کهٔ یو ځل د یار د زلفو په تار بند شي — خلاص يې مهٔ کړه خدایا! بندې لره تل زړهٔ
په جفا به د زړهٔ بد شي که يې ور کرم — تر خپل زړهٔ پورې تهٔ قیاس وکړه د بل زړهٔ
په شړلو مګس نهٔ درومي له قنده — ستا له شونډو به لا نشي په شړل زړهٔ
چې صورت د ښو یارانو پرې لیدهٔ شي — په وجود کښې ځکه غوړ کړهٔ کتل زړهٔ
کهٔ دولت دې که حشمت پکار يې نهٔ دی — په جهان کښې خو هم ګټلی وپسندل زړهٔ
لکه باد د سبا نغښتې غنچه واکا — شګفته شي د دلبرو په لیدل زړهٔ
ورته تیر عبدالقادر تر سرو مال دې
کهٔ خوښیږي د دلبرو په نتل زړهٔ

# (١٢٧)

تهٔ وردی ومه اوس خپل ځان لره خپل کار کړه
چه دِ زړهٔ باندے بنهٔ کیږی هغه یار کړه

مونږ ماړهٔ شو ستاله نازه ستاله خیاله — له دے پسه بل په دا ناز خریدار کړه
په باطن لکه اغزے په صورت ګل دے — دا سزا زما چه مینه مے په خار کړه
چه خبر دِ په وار وار شوم له احواله — منفعله دِ لولیه د بازار کړه
په وعده په سوګند هیڅ پروادار نهٔ ئے — په دروغ دروغ ویلو افتخار کړه
عاقبت به ئے پیالے د ندامت څښنی — آشنائی چه له نادان سره هوښیار کړه
بے اختیاره زړهٔ دکښیلو په لوری درومی — ما به مینه په تا کله اختیار کړه
که وفا غواړے یاری کا له اصله — زړهٔ چه مینه په بدذات کوی ځان خوار کړه
چه په طمع آشنائی کا یا له ویرے — د هغو له آشنائی ئے ځان ویزار کړه

کهٔ په مخ وی لکه ګل چه بے وفا وی
هغه یار عبدالقادره ترسپی ځار کړه

* * *

## (۱۲۸)

وینځه کهٔ اصیله وی کهٔ توره وی کهٔ سپینه
کنیزې شی له حور وچه پرې ورشی د زړهٔ مینه

شهد که نابات دی، که څهٔ شته شیرینی نوره
مینه ده که ګورے چه تر هر څهٔ ده شیرینه

خیال ئې د زلفینو لکه مار ور باندے پروت وے
نهٔ پریږدی وزړهٔ ته بله مینه چه ورځینه

سل زخمه کهٔ وخوری، ترے به یو څاڅکے پر یونهٔ ځی
هسې رنګه وُچه د صورت کا مینه وینه

خوب به ئې بدل په بیداری، خوشی به غم شی
هر چه ئې په زړهٔ کښې د دلبر و مینه وینه

یار په سوادنهٔ دے که د زړهٔ مینه پیدا کړے
مینه هسې څیز ده چه نزدے لرے کوینه

څهٔ عبدالقادره! په خُلهٔ مینه مینه وائې
څو دِ لا وُجاړه نهٔ ده مینه نهٔ ده مینه

* * *

# (۱۲۹)

چه د خپله آشنا ښهٔ لرې ګیله
له نور چا نه به په څهٔ لرې ګیله

نه عارف د چا په ښو شکر ګزار دے — نهٔ په بدو د دښمنه لرې ګیله
انګورې ترخهٔ شراب ورلره ښو یه — میخواران له ګینهٔ لرې ګیله
چه بے تا ئے غړوم د بل وڅښته — په دا خوی لما لیمهٔ لرې ګیله
هیڅ ایسارئے پکښې نه وکړ ترے پریوت — له ناوکه مے ئے زړهٔ لرې ګیله
چه جار وے ستا د دړ وخاوړه نهٔ کړه — ډېر زما لما بانړهٔ لرې ګیله
بد و بد ته ښهٔ ښکارېږي ښهٔ و ښهٔ ته — ښهٔ له بده، بد له ښهٔ لرې ګیله

ښهٔ که سرے ترے قربان عبدالقادر کړ
بیا ترو وے یار له دهٔ لرې ګیله

★ ★ ★

## (۱۳۰)

جگی جگی آواره زما تقصیر کړه
عنایت مهر په ما په روئی دپیس کړه

هر ستم زما قبول شول د ښه وی
ما داخل د خپلو سپیو په زنځیر کړه

گرد غبار د ماڼړی لرے کړه له دِله
لکه وو تر هغه زیات صفا ضمیر کړه

د غمزے په تیر دِ هیر عالم زخمی دے
مون هم بارے سرفراز په یوه تیر کړه

داکوم مهر کوم انصاف کومه یاری ده
په وئیلو د دښمن مئین زهیر کړه

د وصال عمر د برق غوندے زر تیر شی
یار چه اوس در ته حاضر دے بنده ئے ځیر کړه

یار ته وے عبد القادر چه "زه دلگیر یم"
وے ئے "شکر! خدائے دلا تړ دا دلگیر کړه"

## (۱۳۱)

چه ئے رنگ په رنگ د گینلیو د رخسار شه
په گلو نو کښے گلاب ځکه آبدار شه

چه تښتیدے ئے ستاله قده سروه وشوه
سربلند په نورو ونو کښے چنار شه

که طالع د عاشقانو تورہ نه وے
تور وربل ئے په مخ ولے تارپتار شه

په عاشق به ئے همیشه جور و ستم کړ
بنده چه تیر د بنا ئسته د بنا ئست وار شه

چه له عمره ئے بر نورو وکړے وخوری
هم هغه له خپله عمره برخوردار شه

هیڅ منت د بل د یار د یما بار نه دے
عشق زما او د معشوق ترمینځ د یار شه

اوس دِ ځان وغم ته ساز عبد القادر کا
چه د درست جهان بد خوئی ور دده یار شه

# (١٣٢)

خوښ له وصله نهٔ شوم د هجران له غمه زهٔ
نهٔ کړم په ګل مینه د خزان له غمه زهٔ

خلق راته وائي چه زحمت دِ لا دوا دے
لا مِنهٔ چه نے خلاص شوم د درمان له غمه زهٔ

سر دے په جهان کښې د همه واړو بنا دیو
نهٔ دِ شم بیغمه د خوبان لهٔ غمه زهٔ

زهٔ چه د خپل یار په کوڅې کښې کښیناستم مقیم شوم
کښیناستم بیغمه د جانان لهٔ غمه زهٔ

اوس به له دے پسه د خپل ځان په غم اخته شم
ډیر په زړهٔ زهیر شوم د جهان لهٔ غمه زهٔ

غم دے له ازله په نصیب د عاشقانو
ځکه نهٔ خلاصیږم یو زمان لهٔ غمه زهٔ

ما عبدالقادر چه دا غزل د فراق وُو دے
رشک به کړم په وښکیو د باران له غمه زهٔ

★ ★ ★

## (۱۳۳)

که خبر شے له خوبن خاطره ستهٔ
شپه او ورځ به په ناړو شے لکه زهٔ

څو تا وُنه بانده تیر شی چه پخیږ نی
د پخو په حال خبر نهٔ دی اومهٔ

که دِ سوے چرے زړهٔ دعشق په اوړوی
ستا به هله زړهٔ په سوو بانده سوهٔ

شاعران ئے له لذته خبر نهٔ دی
چه نسبت ئے کا له شونډو ګبینهٔ

عام عالم له حقیقته خبر نهٔ شول
د تقلید خندا کوی سکه کانړهٔ

د دنیا په تلهٔ راتلهٔ پروا دار نهٔ یم
غم ښادی مے شی د یار په تلهٔ راتلهٔ

ښهٔ دیدن لکه آواز د روح خوراک دے
ځکه هیڅوک ماړهٔ نهٔ شول په لیدهٔ

ښائسته دیمچا نهٔ دی د چیل زړهٔ دی
هغه خوار شی چه وکښلیو ور کا زړهٔ

خلهٔ چینه ده د حیات مخ ئے آتش دے
چا وے دا چه یو ځائے نهٔ دی اور او بهٔ

ګوره یاد کوم کمبخت سری په خلهٔ شو
سل ښکنځل راته کوی چه غواړم خلهٔ

تل ترے خواست عبدالقادر کا دیاری ئے
یار هرګز ورته وُنهٔ وایهٔ چه ښهٔ

# (١٣٤)

ساقي هسې پياله را کړه رندانه
چه په ښندل ئې لايعقل شم ديوانه

سر زده له خلقه تښتم وصحرا ته
د مجنون غوندې په ځنګل ځائې کړم ويرانه

دمقصود ميوه هله ورځني وخوري
چه په خاوړو کښې ځان نيست کاندي دانه

چه پکښې د بناګسته وَ د مخ خيال دے
دے زما خاطر د چين نګار خانه

له غيرته ے خاطر پاره پاره شي
چه ئې ګټے په ويښتو ومي شانه

دبهار په وخت محتاج د مطرب نهٔ يم
راته بس دے د بلبلو ترانه

هره شپه هنګامه کرمه کرم په کوټے کښې
ګُندے راشي بناګسته په دا بانه

چه هوائے وبائيللو ته د سرشي
غواص غواړي په صدف کښې دُر دانه

سر به سل ځله ترے ځار عبدالقادر کا
که د سر په ښندل مومي جانانه

## (۱۳۵)

چه راوړے دے له اصله دے له ځايه
بوټي به څرنګ ځي له مينکو راته وايه

د ښيښې قلقل سرود دے د مستانو — مستغني له دف او چنګه دي له نايه
نور عالم وته صفت کوه د حورو — ملا ما وته نور بے ياره مه ستايه
نور هم تا ته ښکاره که ښه دي پرده پوشه — دا زما عيبونه نور وته مه نمايه
چرے نه عزيز ذليل، ذليل عزيز کا — په نااهلو سيورے مه کوه هُمايه
په افطار کښے دے د زړ روژو ثواب دے — يار چه نيسي در ته مټے روژه پرے کشايه
مرګ دے سل ځله بهتر دے تر ژوند وته — په هجران[۱] کښے د عاشق مه بيوه خدايه

چه ديار په ديدن موړ عبدالقادر شي
که ئے بيا دے له دنيا هاله دے بيايه

---

۱ په هجران کښے عاشق مه پايوے خدايه (خ)

# (۱۳۶)

مخ لکه آفتاب[2] وخپل مېږن ته ځلوه
زړونه د غمانړو لکه موم پړ ویلوه

ستا ترخه وېل په ما خوږ ښه لګي ترقند و
بے له ما مشتاقه ئې په بد مهٔ ځکوه

ګوری و آسمان ته هیڅ نظر نهٔ کا وېښو ته
ډېر په کبر دړومی خدائے ئے مهٔ درغلوه

ډېرے کسلے جونه مالیدلی دی په سترګو
ړوند د شم که تا غوندے په حسن بلوه

زوړ د غابنو مهٔ کړه مخ ئے صاف تر آئینے دے
زخم به پرے وشی په وړو وړو ئے کښلوه

عمر به کم شی که ئے تار د زلفو کم شی
فهم کړه اے ډمے! ږ منځ پرے وړو وړو چلوه

لاړ تر منځه بند شوه هیڅ ادراک دور تلو نشته
اوس دیاړ په لور قاصد د وښکیو زغلوه

ګل دے د مقصود د باغ که زړه دې چه غوړېږی
تل سحر سحر شبنم د وښکیو تلوه

زړه ئے چرے نهٔ وی رقیبان له تانه تو ر کا
یو زمان له ځانه ځل دلبر مهٔ بیلوه

دا غزل[1] جواب د خان د هغه غزل کېږی
"خدائے[2] له خپله یاره نه هیڅ یار مهٔ بیلوه"

پرېږده چه تنګ غوندے پرے وسوزی ځان خلاص کا
څراغ د مخ ښکاره عبدالقادر ته بلوه

---

[1] ګوره دیار مخ ته بیا لیمهٔ پرے ولوه
زړونه د بد رنګو رقیبانو ویلوه

دا د خوشحال خټک د هغه غزل مطلع ده چه عبدالقادر خان پرے دا غزل وئیلے دے ۔

[2] زه د بېلتانه په حال خبر نهٔ وم خبر شوم
خدائے له خپله یاره نه هیڅ یار مهٔ بیلوه (خوشحال خان خټک)

## (۱۳۷)

چې پیدا دے هر محنت په دا دنیا څهٔ
په جهان تربیلتا نهٔ نشته بلا څهٔ

هغه دَم چه دوه مئین جُله بیلیږی — کهٔ باور کړے نور به سخت نهٔ وی تر دا څهٔ
یو زمان تنها له خلقه راته کښینه — چه ئے وُوایم، لرم ورته پخوا څهٔ
چه دا هسے نن خبرے په ناخوال کړے — چا به خواه درته وسُلی دی لما څهٔ؟
هیڅ باور ئے په وعده باندے وُمهٔ کړه — بنا لُسته څهٔ، په وعده باندے وفا څهٔ
بیهوده دکلو پانړے خورے نهٔ دی — په رموز ورته وسُلی دی سبا څهٔ
د رقیب خبرے مهٔ کوه وَما سته — څهٔ غرض زما په دهٔ، ودهٔ په ما څهٔ

سرْدرلهٔ عبد القادر ترتا ئے ځار کړ
خدائے دِ نهٔ کا چه به دریغ لری لتا څهٔ

★ ★ ★

# (۱۳۸)

کهٔ خانی کهٔ ملکی که سلطانی ده
کهٔ گورې بیهوده سرگردانی ده

مرګ ژوندون بې کښلیو واړه مساوي دے
بناشته ژوند په یکار زندګانی ده

په نصیب زما د زړهٔ دیار د زلفو
له ازله بخره شوے پریشانی ده

له مستئ مے شیشه ږیوته له لاسه
ساقي! قهر راته مهٔ کوه ګرانی ده

د هوښیارو په غلطئ قهر عتاب شي
معذرت د نادانانو نادانی ده

یا به سوزی د چاخوله یا به خون کړی
چه اغوستې جامه ارغوانی ده

د عشق بوټیې به دګوړ له خاوره دری
د هر چا چه د خپل یار مینه جانی ده

خرابات لره به ځم له صومعے نه
چه په کښے د دوارو کونو امانی ده

ترګنجینه د قناعت لاندے جهان دے
که دا کسته کړے په ګته سلیمانی ده

سرے سرے وینګے دي په مخ عبدالقادره!
وخپل یار ته دیاقوتو مهمانی ده

★ ★ ★

## (۱۳۹)

چه په زړه کښې یې پرته وی د سر مینه — بیا به نه موی هرګز د دلبر مینه
چه تلخی د بیلتون شته وبه یې نه کړم — که خوږه ده لا تر شهد و شکر مینه
لکه زر تر خاص و عامه پوره یې زر وی — هر سړے چه کاندی ډیره په زر مینه
ماته بوئیں د خپل آشنا د زلفو بس دے — که نور خلق کا په مشک و عنبر مینه
په لباس د کهده ایئی لکه بادشاه دے — په هر چا باندے چه وکا اثر مینه
تورے خاوړے یې سند شی اورنګ پریږدی — شاهجهان د زمانے کا نفر مینه
د دنیا مینه همیش په زړه رنځور وی — ځکه نه کا په دنیا قلندر مینه
د پیغور ناوکی هیچ اثر پرے نه کا — عاشقان لری په مخ کښې سپر مینه

نور تمام له عیبه ډک عبد القادر دے
یو لری په خپل وجود کښې هنر مینه

## (۱۴۰)

نن په رازوانۍ رازدار لما سره
بویه داچه غیر نه وی را سره

په بوستان کښې غوټۍ ځکه هسے واشوه — چه پرے راغے د تا بوئیں سبا سره
بادشاهانو سره غم د درست جهان دے — دیوے ډوډۍ یې غم ګدا سره
لږ اوره کاندی د نمر روښنائی کمه — بد دِ نه شی یو زمان له چا سره
صرافان به یې زما په مخ راوځی — دا زما عمل روپئی دی را سره

بناسته کله د چا سره وفا کا
چه به کا عبد القادره تا سره

# (۱۴۱)

یا مجنون شوم خوی ے نورشۀ یاستا عشق راباندے زوړ شۀ
یاستا عشق راباندے زورشۀ یامجنون شوم خوی ے نوړ شۀ

غم هاله زما په کوړ شۀ چه په تا باندے مئین شوم
چه په تا باندے مئین شوم غم هاله زما په کور شۀ

بیا دخیال په سمند سورشۀ څو وکړی به پائمال کا
څو وکړی به پائمال کا بیا دخیال په سمند سورشۀ

رانبکاره دِ زوړ وشوړ شۀ اوس به څۀ لما خلاصیږے
اوس به څۀ لما خلاصیږے رانبکاره دِ زوړ وشوړ شۀ

په معنیٰ ژوندی په کورشۀ چه دیدن د کښلیو نۀ کا
چه دیدن دکښلیو نۀ کا په معنیٰ ژوندی په کور شۀ

دګلونو ے زړۀ تورشۀ پکښے بوئیں د وفا نشته
پکښے بوئیں دوفانشته دګلونو ے زړۀ تور شۀ

عندلیب وے په شورشۀ په وصال کښے نارے نۀ شی
په وصال کښے نارے نۀ شی عندلیب وے په شور شۀ

درست صورت ے لکه اورشۀ زنهار مۀ بلوسه راباندے
زنهار مۀ بلوسه راباندے درست صورت ے لکه اور شۀ

په دریاب کښې کله شورشۀ چه په اصل ګوهر خوب وو
چه په اصل ګوهر خوب وو په دریاب کښې کله شور شۀ

خیال دیار دوړ وځو نورشۀ پرې ریبي ے دزړهٔ وُ ے
پرې ریبي ے دزړهٔ وُ ے خیال دیار دوړ وځو نور شۀ

چه وُربل ئې په مخ خورشۀ دنړا ورځ راباندے شپه شوه
دنړا ورځ راباندے شپه شوه چه وربل ئې په مخ خورشۀ

دهغو چه وُلی سپورشۀ څۀ ئې مۀ کنړه چه هیڅ دی
څۀ ئې مۀ کنړه چه هیڅ دی دهغو چه وُلی سپورشۀ

چه نظرئې په بل لورشۀ خوارشوے اوس عبدالقادره
خوارشوے اوس عبدالقادره چه نظرئې په بل لور شۀ

★

## (۱۴۲)

چه د بخرو ويش په ورځے د ميثاق شهٔ
د چا وصل په نصيب د چا فراق شهٔ

د آشنا له لوريه خط رالره راغے
بيا مے اورې په زړهٔ تازه د اشتياق شهٔ

خدايا! نور ديارهٔ بېلتون راښكارهٔ مهٔ كړے
د زړهٔ قوّت مے كم طاقت مے طاق شهٔ

هر محنت چه ئے په عشق كښے وو څكولے
هم هغه سبب د قُرب د عشاق شهٔ

د ليدو لذت ئے څو دے نهٔ پوهيږم
چه په ياد مے ئے د اصے خوږ مذاق شهٔ

چه د نس په لغښته دږو مې زړهٔ آزار كا
و دوزخ وَته تيار شي هغه عاق شهٔ

دعُقبیٰ د ناوے عقد څُكه گران دے
چه ئے مهر هم د دے ناوے طلاق شهٔ

ځان او زړهٔ عبدالقادر درلهٔ ، يار يو ړهٔ
نور حساب به څُنے څهٔ غواړے بے باق شهٔ

★

# (۱۴۳)

له همه واړه عالمه صلح کُل شه
وَبنو بد و خوشبوئ ورکوه گُل شه

تعلق په تجرید ونی هوس مهٔ کړه
په بهار کښې په نار و لکه بلبل شه

دُنیا جسر آخرت ده یاده شوے
دسیلئ غونډے زرتیر به دغه پل شه

دسبب توانګری عین نیستی ده
توانګر په خزانو دتوُکل شه

اضطراب به دخلاص نهٔ کا له قضا نه
مستقل ورته په صبر وتحمل شه

ځان دعشق په اور لوګے لکه سپند کا
هم په دا بوا نه ځار تر بنهٔ کاکل شه

په تاخیر کښې آفتونه پیدا کیږی
معطل مهٔ کړه ساقی په داد رُمل شه

سترګے مهٔ وُچوه یو زمان له نمه
تل په زړهٔ تروتازه لکه سُنبل شه

خوشحال نیت عبدالقادر ه یار ته سم کړه
بے پرواه د بدګوئ د چغل شه

## (۱۴۴)

محبت دِ چه د چا په زړهٔ محکم شهٔ
هم هغه په حقیقت کښې ستا صنم شهٔ

په دا لاره تلهٔ په سترګو په تندی شی    ځکه پا تو د ناقص ځنی قدم شهٔ
چه هر دَم ئې پریکوی د عمر وُنه    په مثال لکه آره د سرِی دَم شهٔ
کشکې ما مِهر د یار لید لے نهٔ وے    په هجران کښې ئې هر مهر راته غم شهٔ
چه ژوند ے پرے کوځیدم د آشنا درد وو    اوس پوهیږم وُیه مرم چه درد مے کم شهٔ
کج وراست بخیل ځائے واړه زیبائی کا    د دلبر وروځے کږے قامت ئې سم شهٔ
چائے شمار نهٔ کړے حلقے د تورو زلفو    په فکرت ئې ډیر وګړے پسے خَمْ شهٔ

چه په هجر کښې ئې وُنهٔ مری لا پیائی
په تحقیق عبدالقادر تر یاره کرم شهٔ

## (۱۴۵)

څو د عشق په اور دِ نهٔ دهٔ ویلې واز ده
کهٔ دعویٰ د عاشقئ ئې وکړې تاز ده

تهٔ به څرنګ په دا هومره شتاب درومې
چه دا لار د څره زو او دیکتا زده

نا امیدې هیڅوک نهٔ درومي له دره
په هر ځائې ئې د کرم دروازه باز ده

د طاؤس وزر طاؤس لره بلا شي
بنادونئ په قفس کړې خپل آوان ده

هنر مند د خپل هنر په لومه بند شي
دلیری د باز بلا په ځان د باز ده

لوئې وُنې سیلئ پریباسی، نهٔ بوټي
عاقبت سرنګوني د سرفراز ده

د غماز وینا وینا وار وه مهٔ اروه
چه وینا ئې دوست ګداز دشمن نواز ده

سَرساتنه په مذهب د عاشقانو
له آشنا عبدالقادره! لاجواز ده

## (۱۴۶)

خدایه مهٔ کړې د هیچا په کور کښې غوټه
زړ چه غوټه شي یا کاڼے شي یا لوټه

که په رنګ د خټکي ئې په داغهٔ شو — چه مزه د خټکي نهٔ لرے پھوټه
ساقي که پیاله را د هغو میو — چه ئې څښونے شي بېخود له یوه کوټه
چه سودا کا بے دکښلیو له بنهٔ مخه — عاقبت به د هغو سودا شي تروټه
حال دوارو په وار وار راته معلوم شو — مهٔ دِ وینم په خُله سچه په زړهٔ جھوټه
ماتے ماتے زلفے بیا په مخه راغله — جھوړه خلق تېر هماړا توبه تھوټه

تر هغو زلمیو ځار عبدالقادر شه
چه دُنیائې کړه د ځان دوړاندے لوټه

## (۱۴۷)

چه دلے هورسے د مرد پرده پوشي ده — خاموشي ده، خاموشي ده، خاموشي ده
په سبا به حقیقت درته معلوم شي — چه نن شپه دِ تاله چا هم آغوشي ده
په کوشش چه نهٔ زیاتیږي ځائې بخرے — شکه بهتره وَسرېږي ته کم کوشي ده
کله لب په لب د یار کله په جام بردي — هسے رنګ د نیک بختانو مئے نوشي ده
په قیامت به له قیامته خبر نهٔ شي — چه ئې ستا له سترګو شوے مدهوشي ده
چه ئې یاد په هر ساعت په هرهٔ ساه ئې — له هغوته وے ستا فراموشي ده؟

تر ناقصه هوښیار ئې عبدالقادر ته
په سل زر مرتبې بهه بے هوشي ده

# (۱۴۸)

داوینا ئے د بیمار خاطر شافی دہ
یوہ زرہ لرہ یوہ مینہ کافی دہ

پہ ازل ئے زما دُرد دنور صاف کڑہ
لہ ساقی سرہ زما سینہ صافی دہ

دھر گل احسان ئے داغ پہ خاطر ایښے
دخوانمرد سینہ داغ داغ پہ تلافی دہ

چہ لہ نورو دا انصاف طمع لرینہ
پہ مذہب زما ھم دا بے انصافی دہ

سخندان بہ ئے پہ کومہ خُلہ بیان کا
ستا دخُلے تشبیہ راوڑہ موشگافی دہ

ابلھان بہ ئے باور پہ آشنایئی کا
دھر چا چہ پہ وعدہ کښے خلافی دہ

د زر بفتو پہ ودو بہ څۀ پوھیږی
چہ پیشہ ئے ھمیشہ کرباس بافی دہ

ھیڅ پیغور د عصیان مۀ کوہ وماتہ
ترگناہ د دوست زیاتہ معافی دہ

مرد ئے مۀ گنڼہ چہ لاف بے کروے کا
مرد کردہ بے لافو کا، ښځہ لافی دہ

دخپل ځان دپارہ نیم درم اسراف دے
چہ پہ بل خونہ بښندے بے اسرافی دہ

خوشحال دا عبدالقادر تہ بیا بیا وایہ
یوہ زرہ لرہ یوہ مینہ کافی دہ

## (۱۴۹)

چه ژوند ون د جهان جاودان نشته ... په هر حال کښې چه ګزران شي ارمان نشته
نوم ئې ځکه د جهان په جهان کښېښو ... چهنده د ے قواري ئې زمان نشته
چه هغه له زيانه خلاص تمامي سود شو ... چه په زړه ئې غم د سود او د زيان نشته
د هر خان چه نه دوړئ وي نه ئې توره ... بنه جواب ئې دربان وکا چه خان نشته
که حاسد مے په زوال د نعمت ګرځي ... څه مے کېږي تړے مے ويره چندان نشته
په ژړا که تور د سترګو سپين کړم بنائي ... د يارانو نخښے ويسم ياران نشته
ځان هاله عبدالقادره چه جانان وي
په صورت بانړ ځان بار چه جانان نشته

## (۱۵۰)

د مردانو هغه شته چه د تا نشته ... وايه مه چه زمانشته د چا نشته
سترګو ربه څه باور پرے بانده کاندي ... که رانده نارے وهي چه رڼا نشته
د سبا په حال غنچے د نوبهار زده ... د خزان وهلي وائي سبا نشته
د دنيا زامن په خوئ د خپلے موردي ... بيوفا دي پکښے بوئيں د وفا نشته
په منکر بانده ليوه په ما يوسف ئې ... په دوه کونه د مخې د لتا نشته
ستا په بوئيں چه همکې رانده بيناشول ... ستا له بوئيه بے يعقوبه آشنا نشته
وائي خار وخس جار وکړه چه زه د رشم ... خار وخس خو به هم زه يم بے ما نشته
هر سحر سترګے د ګل په وښکيو پر وي ... په دا باغ کښے بے ژړلو خندا نشته
هيڅ اندوه د ځائے ځائيږي ور سره نه وي ... درست جهان د هغو ځائے چه ئې جا نشته
که طلب د کيميا کړے ګنده بيا مو ے
په دا وخت عبدالقادره رښتيا نشته

# (۱۵۱)

د همه بدیو سر بد آزاری ده
هومره جور ظلم مهٔ کوه زاری ده

چه په بدو نیکی کاندی مرد هغه دے　　په نیکئ چه نیکی کاندی خرخاری ده
تا په سترګو زما خوب له سترګو یووړه　　بیا ویل کړے چه د څهٔ دِ بیداری ده
ساقی هومره شراب راچه تمام مست شم　　ترنیمګړے مستئ بهتر هوښیاری ده
یو زمان مے به له ځانه یار بیل نهٔ کړی　　وے څهٔ کړم لاس مے نهٔ رسی خواری ده
قراری آرام دِ کا چه په زړهٔ دوغ وی　　په نصیب د خوبو زړو ناقراری ده
هره شپه راسره مل وی په هجران کښے　　ستا تر خیال پورے زما شرمساری ده
چه ئے نه مومی پرهیز کاندی له ښکلیو　　را معلومه د زاهد پرهیزګاری ده
په ساتل د خوبو زړو نهٔ پوهیږی　　د زړهٔ څوړ د نادان کښلی یاری ده

خدائے دِ دروغ عبدالقادر ورځنی نهٔ کا
چه ئے ستا له سترګو شوے بیماری ده

# (۱۵۲)

کهٔ تراخهٔ دی هم شراب د قهر نغره
ظلم جور په چا مهٔ کړه ځیګر وړه

باز چه وینے د ځیګر خوری مرګ ئے زړه وی
له دیو وینو ځان ساته زما ځیګره

هیڅ حاجت د بند زندان ورلره نشته
بند زندان دے دد انا د خُلے خبره

د دوران د حادثو غشی ئے نهٔ خوری
هر حلیم چه و اغوندی د حِلم زغره

چه د زړهٔ تر کس پریوځی دیر مرین شی
خدائے دِ پرے نهٔ باسی څوک له دے کمره

که سړی په اصل یو دی فرق ئے ډیر دے
یو په یو وی، یو په سله، یو په زره

مرغلرے سل اخستے په دینار شی
هم په سل دینار اخست شی مرغلره

کهٔ بادشاه کهٔ اُمراء ځان به ئے سیال کړے
چه اُمید نهٔ کړے له چا عبد القادره

## (۱۵۳)

زړهٔ مدام راته وئيل کوی چه ژاړه
په ژړا ژړا بسيل شوی مئين غواړه

په طلب ئې د دنيا ودانی پرېږده
ليونيو غونډې ګرځه په اوجاړه

مصلے د بې ننګئ ور پسې ننګ کړه
د ناموس بچاونړه تهٔ کړه وے نغاړه

ياد زما د سترګو تور پرې ګرځيد مه
په هجران مې ئې له سترګو دنړا لاړه

بنائسته کهٔ د کشمير کهٔ د بل ملک وی
تر يوهٔ بانړهٔ قربان شه ديار، واړه

د ملے زنځير دِ نور نيسی په لاس کښے
ماښولی دی ديار زلفينې دواړه

په خوارئ موندے شی کام له سنګيں لانو
په محنت سره سرهٔ زر خيژی له کاړه

کهٔ رضا دِ ده زما په سرلوئيسی کښے
په خندا اختدا راځه په لکه غاړه

تل ديار په سترګو مست عبدالقادر دے
کهٔ نور مست دی له شرابه يا له تاره

## (۱۵۴)

په لاره تلمه په مخه راغله يوه دلبره پرى رخساره
د نمر په شانې، لا تره روښانه په ښکلي مخ وه هغه نګاره
په قامت سروه په تلو تيزروه آبروکمانه ناوک مژګانه
په سترګو بازه خونريزته سازه په ويښتو ليله په مخ نهاره
غاړه بلنده خاطرپسنده عنبرين مويه ياسمين بوئيه
په شونډو لعله په زړهٔ الماسه په سپينو غاښو دُر شهواره
په زنې سيبه بې له آسيبه په ملا ترخيلو ويښتو نريه
شيرين کلامه نازک اندامه ولول ئې زلفې لا له عذاره
بې مثو سته خله ئې نيست وهسته ؤکه له نازه خالي له نيازه
سر ترقدمه ثابته روغه له هره عيبه پاکه ويزاره
مخ ئې څرګند وو نظر پرې بند وو د مخ شغلې ئې د مخ حجاب وے
په خيال خيال تلله نظر ئې نهٔ کړه هرګز وچاته له کبره عاره
له ما غائبه لکه پرېښنا شوه په منګله لاړه کهٔ په سما شوه
هيڅ نهٔ پوهيږم چه چرته داشوه راته ؤوايه اے خبرداره
اوس څهٔ چاره کړم چه ئې بيا مومم اے زما پير روشن ضميره!
چه چرته دړه وم په چرته ئې غواړم هدايت وکړه د خدائے دپاره

هوس ئې يو وړ غم ئې راپرېښو داغ ئې بيا نوے راباندې کښېښو
مقصود ئې دادے عبدالقادره اوس پسې ګرځه سينه افګاره

## (١٥٥)

دریغه نور غمونه لرے شوے له دِ له
پکښے غم د خپل آشنا وے تل تر تله

شبنم وَصل د ګل بیا مونده چه خاموش شو    ترے محروسه شوه چه شورکاندی بلبله
بنهٔ چه ژبه دِ قلم شوه په مجلس کښے    شمع ! تا چه د خپل سوز قیصه وئیله
عاشق هیڅ نهٔ وو خبر د عشق له سوزه    دا لمبه پرے معشوقے ونګوله
د فانوس په پرده څراغ کله پټیږی    کهٔ ئے مخ په پلو پټ وو ما لیدله
کهٔ په زړهٔ ئے د یار یادو میشته وکړه    د یار خیاله! تهٔ ئے پاس په سترګو ملهٔ
په ماتم د پروانه چه څان ئے وسوهٔ    شمع اور په تندی بل کړی ژړیده له
کهٔ په مخ ئے خط ښکاره شهٔ په داغهٔ شو    په جوهر آئینه کله چا غندله

درسته شپه دِ په نارو عبدالقادر کړی
تهٔ بے غمه په پالنګ باندے څمله

## (۱۵۶)

پهٔ خاطر ئے هومره نهٔ دی الموونه
چه ئے وشمیرم وچا وته نُوموونه

چه نور مینے کا پهٔ کښلیو زهٔ ئے ګودم
درست لړمون ئے له پښخا که شوکرمونه
محبت موافقت دے چه واقع شی
نهٔ په سحر په افسون دے په دَمُونه
چه دِغم دِ بیلتانهٔ زمونږ نصیب کړه
مګر نهٔ وو په جهان کښے نور غمونه؟
نوے میاشت بلهٔ ئے، لعلونه، ستوری میخ کړم
که نازک د یار سمن لری سومونه
کهٔ د درد دِ په بے قدرو قدر نشته
ستا دردونه به په سترګو مونږ زغمونه
چه پامال د ندارچیو زړونه نهٔ شی
په ورو ورو بړده په نخا کښے قدمونه
هومره اور د رکښے بلیږی ایرے نهٔ شوے
بلا سخت ئے د عاشق ننه لړمونه
چه طالع د سړی نهٔ وی څهٔ پکار، کهٔ
څوک افزون لری لښکر تړی بارونه

څښنه شراب د محبت عبدالقادره!
خو لا ستا د خاوَرو جوړ نهٔ دی جامونه

## (۱۵۷)

راشه چه راشي ښادي زما په خونه
مه دره مه چه نه دره وي زما په زړه سيخونه

نه ګوره که وګوره احوال به دے معلوم شي — څي چه څي په مخ زما دسره وښکيو ورخونه
مه خانده چه نه خاندي پما پورے اغيار سره — مه کړه په ما مهر کړه که دار کوے له خونه
نه وينم چه نه وينم دلبر جهان په سترګو — مه ليدے چه نه ليدے هرګز کينلي مخونه

کښينوي چه کښينيني ګرد غبار دغم له دِله
شي چه نشي دا په بيدلانو شوا خونه

## (۱۵۸)

مونږ ته برناحق عالم واڼي پندونه
په خپل عقل هر سړے کا انندونه

د نورځاے په مونږ څه کار چه امتناع کا — که ديار په مينه سرو مال بښندونه
محبت لکه درياب په زړه داوخوت — د درياب په مخ کښے څوک تړي بندونه
د پيوند په پريکولو فقيري شي — نه په دا چه جُله کيږدي پيوندونه
بے اختياره ورکا وه شي زړه وکښليو — نه دا کار په مصلحت شي په پندونه
بهايم په خوراک شخوند کا ، دسړيو — د خيرو په معنو بويه شخوندونه

چه ژويه شي ستا بيان عبدالقادره!
په رنګ رنګ ترے پيدا کيږي نور خوندونه

## (۱۵۹)

ناز پروره چه یغاره کا هارونه | په سینه ئے د ګل وُشي پرهار و نه
ته به وائے په ګلابو شبنم پریوت | چه له قهره ئے خولے شي رخسارونه
که یو ځل چرے غلط شم توبه وی مے | په ورځ سل غلطئ کړي نه ئے شمارونه
ما به تل دیار تلی کښېښولی په سترګو | که مے نه درلے بانړه لکه خارونه
په لیدل د بنائسته غزل انشا کړم | عندلیب په ګلو کانړی چیغارونه
دلبانو جړئ هم ورځنه شته دے | که ئے دواړه تورے زلفے دی مارونه
په هیڅ ځائے بانده ئے کړے اسپنوے نشي | دغه دوه سترګے دِ لا دی کمارونه

راغے وار د تا دستلو عبدالقادره!
په وار وار یارانو تیر کړه خپل وارونه

## (۱۶۰)

که دِ نه ده د خپل مخ خیره چر کینه | آئینه زما د زړهٔ نه ده زنګینه
چه وتور وَته نزدے شي هغه تور شي | په ستنه راځني ګرځه تکه سپینه
چه ئے زړهٔ د محبت په لمبو وُسوهٔ | د دوزخ له اوره څهٔ پروا لرینه
توره شپه به په عاشق بانده سپوږمئ کا | که یلو له مخه واخلی ماه جبینه
وار په وار مے له زړهٔ واړه مینے لاړے | بے له کښلیو چه هرګز ځنے نهٔ ځینه
د بلبلو له آوازه ئے اثر دے | دا غنچه چه خپل ګریوان پاره کوینه

غیرِ حق مینے همه واړه حجاب دی
مهٔ ګره نور عبدالقادره په څهٔ مینه

## (۱۶۱)

ننداره ولاړه راځئ چه پیسي ځوانه
په اختر به زلمي ځونه کا سیلونه

تهٔ به وائې مخ ئې ګل د پېغمبر دے — چه ئې ږمه په مخ وُوهي خالونه
چه په سیل د بهار د ګلو ګرځي — زلمي ګل په دستار بندي په وربل ځونه
ځنې دواړه زلفې ږدې کا په ګلو — ټوک په غاړه کا د سرو ګلو هارونه
سرهٔ او زیړ نمري اغوستي ګلرخانو — تهٔ به وائې سرو وینول ګلونه
چه ګلونه تولوي سندرے وائي — شرمنده کا د بلبلو آوازونه
درست صحرا په خوشبوئې سره خوشبو کا — په هغه مزکه چه کیږدي قدمونه
په خندا خندا تېري د ستے د ګلو — استوي وچل چل یار ته پیشکشونه
چه له سیله راروانې شي وګورته — ګل لمن، بلبل ئې نیسي استینونه
چه له هسے ننداره و نه ځان وُباسے — شیخه! ورک شه ستا بے وخته خلوتونه
که دین د بنا اُسته وُ پکښے نهٔ وے — چا به څهٔ کړهٔ اسټهٔ واړه جنتونه
که آواز دے که دیدن د روح خوراک دے — نفساني د باندے نهٔ کا غرضونه

تیر شو واړه عبدالقادره رابه نهٔ شي
که ژړا کړے که فریاد کړے که آهُوسته

## (١٦٢)

ډېر مې ولیدل په سترګو ګوره باغونه
د فلک په ګردشونو شول راغونه

نمر سپوږمۍ ئې پلیته په لاس نیولې
په وار وار بړدي په سینو باندې داغونه

ډک جامونه د حسرت د ندامت څښي
چه ئې تل نوشل د مېو ایاغونه

د لحد تیاره په شمع د انصاف ځي
پکار نه دي په هاتیانو چراغونه

فراغت ساقي ولجه د ې پیاله راوړه
جهان نه پرېږدي تل چا ته فراغونه

هغه باغ چه تل ماوی وو د طوطیانو
اوس ئې ګوره چه په کښت کاندي زاغونه

څښنه شراب د محبت عبدالقادره!
څو لا ستا د خاوره و نه دي ساز جامونه

* * *

## (۱۶۳)

اے زما خاطره ترک هوا هوس کړه
دعقبیٰ د تلو سامان په هر نفس کړه

ددنیا له خوانه هیڅوک ماړه نهٔ شول
په دے خوان دِ دېر څهٔ وخوړل نور بس کړه

مقدم دِ تل په دین ددنیا کار وو
اوس ددین کار رونه وړاندے دُنیا پس کړه

ملامت په خپل ځان کړه په هیڅ ما مهٔ کړه
تا پخپله وے مینه په ناکس کړه

دعسس ویره هغه کړه چه پردی خوری
خپل خورو به کله ویره دعسس کړه

خس ته هم په خوار و سترګو نظر مهٔ کړه
ما په سترګو لیدهٔ، سترګه ړندهٔ خس کړه

چه دوزخ دوزخ یا دین ی دوزخ نس دے
ودوزخ وته روان وګرے نس کړه

چه ئے ماوته پیغور کاوهٔ د مینے
هغو لا دربانده مینه یو په لس کړه

قافله دعشق منزل ته پوشیدهٔ تله
برهنه و خاموشه ما و ته جرس کړه

ځوانمرد مے بوښتیدهٔ له ځوانمردی ئے
وے ئے "عفوه په هنګام د دسترس کړه"

که لائق عبدالقادر د صافو نهٔ دے
څو قطرے ورعنایت د خم بکس کړه

# (۱٦۹)

عارضي کارونه هيڅ دي تعلق ورپورے مه کړه
چه جوهر درته حاصل شي هميشه طلب هغه کړه

جوهر څه دے، دِتافهم، عرض څه؟ چه بے له ده وي
داوينا تمام سلوک دے، که دنه زده لما زده کړه

دخواهش له کوڅے وُوځه، دا کوڅه ده هرګوره تنګه
ترک دخواست وسيع صحرا دے، په دغه صحرا ميشته کړه

حقيقت روشن آفتاب دے، په ليده ئے ستر ګے بريښي
د مجاز رانجه کړه پورے، پرے روښن دواړه ليمه کړه

چه دِ مخ د دِلبر ياد شي، په ثنا صفت د ګل شه
د زلفينو له فراقه په سُنبل د زړه دمه کړه

شونډ غاښ ئے چه در ياد شي په مثال دلعلو دُرو
دخيل زړه وينو ته ګوره، ځيلے وښکے ورسره کړه

خيل صورت چنګ و رباب کړه پرے تارونه وُښکے څاڅه
حرف وصوت دځلے پرېږده، پرے دمينے زمزمه کړه

نوآموز عاشق بلبل دے، شور ئے ډير او ميسه لږه
که مثال دکامل غواړے وښتنګ ته ننداره کړه

سکه کاڼے ډک له اوره هيڅ اثر ئے ليده نه شي
هسے رنګ عبد القادره! پسته ته دعشق لمبه کړه

# (۱۶۵)

نن په خوا راغله ماته رُویه ، سمنبره ، سُنبل مُویه
سمنبره ، سُنبل مویه نن په خوا راغله مهرویه

وې ئې "مه ځه له کُویه ، چه ذلیل بے قدره نه شې"
چه ذلیل بے قدره نه شې ، وې ئې مه ځه له کُویه

که له ما دې عاشق بویه ، بے له ما به بل سته گوری
بے له ما به بل نه گوری ، که لما دې عاشق بویه

دعشق چار هرگوره لویه ، سربازان دی چه ئې اخلی
سربازان دی چه ئې اخلی ، دعشق چار هرگوره لویه

صفت شی دگل له بُویه ، دسړی له ښه خصلته
دسړی له ښه خصلته ، صفت شی دگُل له بویه

دریغه دریغه بده خویه ، ته یو څرنګ بد غلیم ئې
ته یو څرنګ بد غلیم ئې ، دریغه دریغه بده خُویه

دتُوبې له شست وشُویه ، مکدر خاطر صفا کړه
مکدر خاطر صفا کړه ، دتوبې له شست وشویه

سحر غږ وُخوت له جُوبه ، لاړ و بیرته به رانه شو
لاړ و بیرته به رانه شو ، سحر غږ وُخوت له جُویه

څه حاصل له گفتگویه ، عمل کړه عبدالقادره !
عمل کړه عبدالقادره ! څه حاصل له جُستجویه

# (۱۴۶)

چه همت دِ د ټپوس دے ځان باز مهٔ کړه
ځان په رَسم د جانبازو جانباز مهٔ کړه

په محتاجو ته محتاج وی ډیر خسیس دے — بےنیازو بل هیڅا ته نیاز مهٔ کړه
اسبابونه د ناز راوړه هله ناز کړه — ستا چه هیڅ اسباب د ناز نشته ناز مهٔ کړه
امتیاز د دوست دښمن وبله ګران دے — بے له خپله دِله هیڅوک همراز مهٔ کړه
د تمام سعی کوه چه کار شروع کړے — یا هرګز اول د چارے اغاز مهٔ کړه
د خبرو په لذت کهٔ خبردار ئے — بیهوده بیرون له شونډو آواز مهٔ کړه
کهٔ دِ لوستے د لا ترکنو[1] آیت دے — سکه هرګز د ظالمانو اعزاز مهٔ کړه
تولّا و تبرّا د ایمان څانګ دی — چه دِ داڅا نکونه نشته پرواز مهٔ کړه

په لیمهٔ به ستا جفا عبدالقادر وړی
په شړل ئے په مراد د غماز مهٔ کړه

---

[1] ولا ترکنوٓا اِلَی الّذِینَ ظَلَمُوْا فتَمَسّکُمُ النّارُ وَمَا لَکُمْ مِن دُوْنِ اللّٰهِ من اولیاءَ ثُمّ لا تُنصرونَ ○ او میلان مهٔ کوئ په طرف د هغو کسانو چه ظلم ئے کړے دے۔ پس وبه ځکی تاسو اور۔ او نشته دے تاسو لره سیوا د خدائے پاک نه هیڅ دوست۔ پس له هغے نه به تاسو مدد اونهٔ کړے شی۔

## (۱۶۷)

په فراق چه مې روان دسترګو جوې شه ‏ ‏ ‏ لږ مې پاتو وآشنا وته آبرو ئې شه
ښڼه چه باد وته پابوس دګل حاصل شو ‏ ‏ ‏ په طلب ئې ښکته پورته تګ وپوئې شه
په خبرو معنیٰ کله ادا کېږی ‏ ‏ ‏ خبر څکه په حیرت له ګفتګو ئې شه
مرتبه دهر چا څه؟ چه ئې معنیٰ وی ‏ ‏ ‏ جسم ګل، غرض ئې رنګ، معنیٰ ئې بوئې شه
په تمثیل ئې چه دیار د قامت راوړه ‏ ‏ ‏ په همه وُنو کښې سر دسرو لوئې شه
دکریم له خوانه مزکه نیصب مومی ‏ ‏ ‏ په ساقی ملامت نشته که جام توئې شه

چه دعشق لافې وهی عبد القادره!
محبت کښې له زردئ آلوده روئې شه

## (۱۶۸)

که په لعل اودُر و نوردولت مندان دی ‏ ‏ ‏ لعل ودُر، زما دیارلب ودندان دی
دهمت سرکوزی نه کا وبادشاه ته ‏ ‏ ‏ په جامه دګدائی سربلنداندی
دساقی دپیالې قدر زاهد څه زده ‏ ‏ ‏ چه په کوټ ئې سرومال ښندی رندان دی
چه په حال دفراق ژنو نه نرمیږی ‏ ‏ ‏ هغه زړونه زړونه کله دی سندان دی
وائی څولرې په زړه زما داغونه ‏ ‏ ‏ تر حساب تر شماره تیر چندان چندان دی
که ساقی دپیالې دور بیا ګردان کا ‏ ‏ ‏ په مجلس کښې یوڅو پاتو هوشمندان دی

چه د طمع له چا شی عبدالقادره!
ته بنده شوې هغه ستا خداوندان دی

# (١٦٩)

چه ترغوږ ے د جرس نارے فريــاد شي
ستا د عشق په بيابان ورک راته په ياد شي

يو په سله به ئے غم د زړهٔ نصيب شي
هر نادان چه د فلک په ورکړه ښاد شي

تو شيرينے دي دا کينلے لا شيرينے
ولے خوږ دے چه په عشق لکه فرهاد شي

چه په راغله مراوي ګل د باغ تازه کا
په تاثير به د صبا ګله هر باد شي

نور چه بوس و کنار کاندي عيب ئے نهٔ وي
زهٔ چه تش کاته کوم زما اهداد شي

هر سړے چه کيني کا لوئي مــومي
هم په دا خادم مخدوم، شاګرد استاد شي

چه پرے نهٔ لګي وئيل د نيک خواهانو
عاقبت د غلمانو په مراد شي

په همه ؤ مريدانو پير شفيق وي
تربيت ئے موافق په استعداد شي

چه اساس ئے د ژوندون د په باد ايښے
پرے به څهٔ د عاقلانو اعتماد شي

و منصور غونډے په دار عبد القادر شهٔ
کهٔ بے عشقه بل ګناه وربانډے زيا د شي

## (۱۷۰)

کہ بنیرے کا کہ بنگنځلے هرچه وائی
هیڅ مهٔ وایه بنائسته دی باندے بنائی

دبهار په وخت هم داوایه مطربه چه په کبنبلیو مینه نهٔ بنائی نهٔ پائی
حلقے ئے انتظاردی و دیدن سته گوره څ به دلبرکوم یوهٔ ته نمائی
هرمارغهٔ درے چمن پخپله ژبه ستا ثنا کا ستا صفت کاندی تاستائی

په دُنیا به مینه څهٔ عبدالقادر کا
چه آخر ئے خواه ناخواه ورځنی بیائی

## (۱۷۱)

چه پیدا وی له یوے قطرے منی
ورته نهٔ بنائی چه کا کبر منی

چه خلقت ئے دصورت له خاورو شوے په هرحال دِ خاکساری کا کهٔ منی
دخزانه به نهٔ کل د صحرا خلاص شی نهٔ به پاتو شی گلونه چمنی
په نازک بدن ئے خت دململ څرخی زما یار ته جامے بویه سمنی
تنگه خلهٔ ئے بنائسته حلقه د کمتے دوارہ لب ئے نگینے دی یمنی
تهٔ چه هسے زعفرانی جامے اغوندے ذر به کړے دیار څهره کور کمنی

ستا جهاد ته ئے هم ستا نفس پیدا کړه
که ئے کړے عبدالقادره دُښمنی

## (۱۷۲)

ستا سترګو وژلے به تر دره نګه اوس ښخېږي
راشه زړه پرے یخ کاکهٔ په دا دِ زړهٔ یخېږي

رقص له خامئ کاندي دانه دديګ په میان کښې
یا تو له صوفي شي هله رقص چه پخېږي

ستا تر سر ځارېږي ستا په سر زما سوګند دے
بل مطلب ئے نشته ځرخ چه هسے رنګ ځرخېږي

خوب ئے باندے نشي لټ په لټ وبله اوړي
ګل د نهالئے ئے په نازک بدن ځرخېږي

ولے به د مزکے نهٔ شي ګل عبد القادره!
تل چه تر ګلونو ښائسته پکښے ښخېږي

## (۱۷۳)

د خبیث په ښهٔ صحبت خبث په خو ځي
د ماهي بد بوئ کله په اوبو ځي

له اصلي بده به لاړه بدي نهٔ شي
کهٔ د ښو په ښهٔ دیدن په ور ځو شپو ځي

لا کیسه لا با زي ښکارېږي بد سته
د کامل د نصیحت اثر په ښو ځي

د مزیو په لوئے ښکار باندے نظر وي
شلانږو مږکو لره تروږے یا پیشو ځي

هر چه شوي په ازل هغه به کېږي
عبث عمر په عیشو اندیښنو ځي

څهٔ نظر به کا دِ دلبر په افتاده وُ
چه دا هسے بد دِماغ په کرشمو ځي

په لیمو به ستا په لوږ عبد القادر ځي
کهٔ یارانو لره نور عالم په پښو ځي

## (١٧٤)

چه سحر د یار له لوریه شمال راشي
د بیمار خاطر ځکه خو په حال راشي

اوس خو وار د وصل تیر شو هجران راغے — یا نصیب چه بیا نوبت د وصال راشي
زړۀ مے ډوب شي په بښتیدۀ ځئے هرګز نشم — چه ریبار د یار له لوریه ملال راشي
نور شغلونه به دِ وُوځي له خاطره — کۀ په زړۀ کښے دِ د کښنیو اشغال راشي
د دیدن د وُږدو تږ و طاقت کم شو — لا به کله وړومبۍ ورځ د شوال راشي
د خپل یار د وصالته امیدوار شم — چه سُورت د یوسُف ما ته په فال راشي

په هجران کښے خوار و زار عبدالقادر شۀ
بیا به کله په شیوه په خیال خیال راشي

* * *

# (۱۷۵)

دژوندون به ئے څه حال حلاوت سنهٔ وی
هرسړے چه په دُنیا بے یاره ژوی

مادِ خدائے په دُنیا نهٔ لری بے یاره
له دُنیا تر یار ښوا دِ زما تلهٔ وی

چه یو غم رابانده ئے ترشی وایم خلاص شوم
نور غمونه راپیدا شی نوی نوی

یو مجنون سوے او لوے دعشق نهٔ وو
مینے ډیر کړل تر مجنونه سوی لوی

څهٔ حاجت چه ئے پوښته کړیٔے له حاله
خود ښکاره دی د هجران په لمبو سوی

چه یکښے نهٔ مهر مینه، نهٔ اخلاص وی
تر و دانه لاوړان ښهٔ دی هغه ژوی

محرم نشته چه خپل حال ورته بیان کړم
نا محرم ته وایهٔ نشی زړهٔ مے چوی

سل فتنے په بیداری کا رابیدارے
بخت مے ویښ وی چه پهٔ غیږ کښے ویدهٔ وی

په نور څهٔ عبدالقادره نهٔ رغیږے
په هجران کښے دیار یاد د زړهٔ وی

## (۱۶۷)

ستا چهره لره خدای تعالیٰ تل ارغوانی
که د غم څهره ده زعفرانی

سر په لاس ور پسې درومه نهٔ قبلیږی
نصیب مهٔ شه د چا دا سرگردانی

مے نوشی تمامه شپه کاندی د نورو
په سبا ئے په ماوی سرگردانی

څو څو گرانے ے آسانے په زبان کا
زهٔ به څرنگ پرېږدم عشق په آسانی

اشارت ئے د دنیا تالا کول دی
چه صوفی په رقص کا دست افشانی

چه لاړ نهٔ شے په غفلت بیا به ارمان کړه
هر نفس کړه د خپل نفس نگهبانی

چه په مخ ئے کاږ وانو نه د خط راغلهٔ
اوس به وشی د شکرو ارزانی

له دعا ئے اوس هم نهٔ یم فارغ شوے
که د کښېنیو په خدمت لاړه ځوانی

ورته عرض سلام د خوار عبدالقادر کړه
چه په کوڅے باده گزر کړے د فلانی

## (۱۷۷)

په طلب ئې چه د تند ے وُچ شي کُومي
غم د نهٔ کا د حيات اوبهٔ به مُومي

د طلب مُصلے دېرو پسے لنګ کړے      ګوره کوم به د دلبرو شونډے چُومي
چه تلخئ ئې د هجران کړه پځان تېره      هم هغه به ئې د وصل پياله څُومي
څښنه څښنوه شراب ساقي پيا به ارمان کړے      عندليب نارے وهي چه بهار دُړ ومي
معشوقے وژلي مړهٔ نهٔ دي ژوندي دي      په دا تشنه نامه څهٔ شوکهٔ مړهٔ نوُمي
جدا شوے چه له يار عبدالقادر دے
په هيڅ رنګ ئې اوبهٔ نهٔ دړومي تر کُومي

## (۱۷۸)

د قيامت په ورځ به سپک پاسي ستللي
په صبا به د روند پاسي چه د روند څملي

تنها هيڅوک ګورستان له لاړ نهٔ دي      خپل عمل غاړه غړئ ورسره زغلي
چه مے ستر کے باندے وا د بصيرت شوے      د عالم ودان مے وليد ل نتلي
نادانان به ئې باور په و دانئ کا      چه په طمع د سيلاب داوبو ملي
د دُنيا کاروند ضِد د آخرت دي      د دنيا قبول په دين کښے دي رټلي
نهٔ صحت موي نهٔ مري هسے تا وېږي      چه په زړهٔ وي د حسد منګوړ چيچلي
چه نظر مے په بنو بدو باندے وکړه      وے ئې "وشره په وُره هغه بللي"
د قيامت له جوکه داړ عبدالقادره
نهٔ کا چا چه خپل بنهٔ بد دے تللي

# (۱۷۹)

که ښکنځل دې په بد ردو تراخه نګی
ماته کړه، په ما ترشهدو خواږه نګی

مشتاقان د تیغ په آب سره سیراب کړه
تر ژوندون ئې بنې په تن ی اوبه نګی

سترګې په زړه بیدار لکه غنچه شه
د دولت نسیم د ویښو په زړه نګی

سنګدلان ئې له ناوکه بې بهره دی
په مشتاقو ترګلونو پاسته نګی

چه ئې داغ زما د زړه د داغ پښتان دی
په لاله ئې خټه خوږه خولیمه نګی

د ښو اغزی ئې لرې په ژړا کړه
چه دیار په قدمونو تیره نګی

یو ساعت عبدالقادر ځني خلاص نه دی
هر زمان د عشق ښکرې په ده نګی

## (۱۸۰)

بونیں ئې نهٔ ځي له خبرو د بهي
چه تشبیه دیار د زنې کا بهي

لاس مې وړونیسه په لاس کښې، لاس دِ مات شه — چه پرې او نهٔ شي زخمونه د بهي
دُنیا خو په ښت اماس دې و دانا ته — و ناپوه ورته ښکاریږي فربهي
مشتاقان کله تمیز د نیک او بد کا — کهٔ صاف نشته ساقي را مټې تهي
په اُمید د خپل مخدوم دستار دئ — واقع کیږي له خادمه کوتهي
امتیاز ئې له سپین مخ له خاوړو نهٔ شي — چه ئې نهٔ پریښولې گرد په یک تهي
که ئې ډوب کا په دریاب کښې تش به ووځي — چه کړې ئې له ازله شو تهي

هغه یار چه آسمان نهٔ شهٔ اخستلے
په کوم زور به ئې عبدالقادر سهي

## (۱۸۱)

خدائے دے نۂ کړه یو زمان حُسنی خالی
ستا اندوه دے دے سبب د خوشحالی

کۀ له خیاله خالی هیڅ بناګسته نۀ دی
ولے تا غونډے به بل نۀ وی خیالی

چه بے هُمایه آوزکا په انجمن کښے
درباب غونډے به موی ګوشمالی

دسړی لکه همت مسے نۀ فکر
د عالی سړی فکرونه وی عالی

سل جنجاله سل فتنے راسره وُکا
بیا په ما یانده نوم کیږدی جنجالی

جان ومال تر جانی یاره صدقه شه
نۀ یو دے نۀ سل زره لکه کروړیالی

## (۱۸۲)

ساقی! مۓ بویه چه وی پرتګالی
خواه پیاله وی مرصع خواه سفالی

علامت دیاره دیرے مینے درد دے
روغ دِ نۀ کا له دردمنسره سیالی

مُقدم په دکیدل خالی کیدل دی
دک هغه شی چه له زړۀ کاځان خالی

په یوځل په هل وهل کا مزکه سازه
د اُمید تخم هله کری مالی

آشنائی کول اسان دی پتے ګران دے
یو یو مرد دآشنایئی پت پالی

عاقبت به ته هم راشے زماځائے ته
کۀ په مزکه یمه پروت ته په نهالی

شیه او ورځ عبدالقادر په جدائی کښے
دواړه سترګے کړے اوره پشکالی

# (۱۸۳)

که ګلاب لکه باران وربان دے وُوری
د ګلابو بُوئیں به لاړ نشی له اُورئ

صباحت دې د یوسف عیش منظور وو
ځکه پیښ شو د یعقوب د سترګو توری

هر یو ګل په خواست ترے ورة ځان ته خوشبو کړ
چه صبا خوشبوئی راوړه ستا له لوری

مه کړه خدائے چه د وفا خو یو نه نور کړم
که هر څو دے یار جفا کړه تل دے زوری

که زاهد دے که عابد که شیخ مُلا دے
همګی د ځیل مقصود په لوری خوری

پاس د دار په سر منصور دے دروغ نه دی
چه عاشق شی بیا به سر له عشقه ژغوری؟

پس شادِ سوګند و نه خوری وَسر ته
هم هغه چه مخامخ دِ په سر لوری

قراضه د زړه وخته لره په مخ بن دے
په وجود د نمر نُمائے نه کاندی ستوری

تر ژوند و نه بنه دے مرګ عبدالقادر ته
چه ئے یار رقیب ته خاندی دے ئے ګوری

---

۱ تجنیس دے یعنی بولان چه یو وابنه دے (حبیبی)
ورے چه یو قسم ساګ دے او تخم ئے په اچار کښے هم
استعمالیږی ۔

# (۱۸۹)

نور عالم خپل خوب کا، رنځوران اخته په نول وی
مزکه توده کوم ده؟ چه او ربل وربا ندے تل وی

برنا حقه ستر کے د رنځو په بار درنے کا
کله د هوسیو ستر کے تورے په کجل وی

بل مراد ئے نشته په دُنیا کښے بے له دے نه
خاورے دغه ملک شو چه مجنوں ترا ینے پل وی

هر چه اول شوی په آخر به هغه کیږی
څوک به ئے اول کا چه پس شوی په اول وی

کله به لا دروے لما اے د سحر خوبه
خوب بیګمه نهٔ کا چه په مخکښے ئے منزل وی

فکر لیونی د سبا نهٔ کا څکه خوښ وی
غم د هر سری په اندازه د طول اَمل وی

هر چه محبت لری دیار د تورو زلفو
تل به ئے په زړهٔ کښے فکر تو نه مطول وی

ما په زړهٔ ویشتلیه! فریاد ونه کړه په زوره
ستا سوے نارے په ما شیرینے تر عسل وی

څهٔ وائے وما ته؟ ما ته لار ده خطرناکه
هیڅ پروا ه ئے نشته کهٔ د خیال راسره مل وی

تل کهٔ آه فریاد عبدالقادر کاندی کرم نهٔ دے
بیل له فراغته همیشه دیاره بیل وی

## (۱۸۵)

د جهانه هسې رنګ دی یاران تللي
ته به وائې چه هرګز نه وو راغلي

نشاني ئې په جهان کښې مونده نشي
هسې ورک شول د جهان سوارۀ نتلي

د برېښنا غونډې ښکاره شول بیا فنا شول
په ځېر ځېر موورته هېڅ نه وو کتلي

نه موسترګې په لید وسره مړې کړې
نه مو وو په دکه خلهٔ وَ بله خندلي

نه موزړونه ځُله تش کړل په خبرو
نه مو پټ رازونه وو ځُله ښئیلي

چه ناګاهه هجران مخ ورته ښکاره کړه
له مونږ بېل شول په ارمان سینه داغلي

له احواله ئې خبر نه یم چه څه شول
څوک په بیا رته ځني نه دی چاروتلي

که خاکونو ته ئې ورشم ناره وکړم
په جواب ئې راته هېڅ نه دی وئیلي

یا له مونږه مرور شول جواب نه کا
یا ئې چا په خلهٔ مهرونه دی وهلي

که ئې وغواړم خبر له خبردارو
دوئ پرې هم لکه مونږ نه دی پوهېدلي

که ئې قبرونه ورانوم پکښې ئې غواړم
ما بې خاوړو پکښې هېڅ نه دی لیدلي

نه پوهېږم چه له کومه لوریه راغله
بیا ئې دی وکوم مکان له سره بیولي

اې یوه خدایا! زر وران د دنیا سرائې کړه
چه آشنا عالم ترې څې نا آشنا ملي

چه هر دم جرس د کوچ ورته غږېږي
فراغت عبدالقادر څرنګ څملي

## (۱۸۶)

بیا یې شي زاړه زخمونه په زړه نوي
چه دیار په بورجل رائیشم یار نوي

حال که وایم وعالم ته منصور یم
که یې پټ ساتم په زړه کښې زړه یې چوي

دعالم له ویرې آه وکښلی نه شم
په کوګل کښې یې دننه وچ شول لوي

په صحبت یې نارضا په درد بې صبره
ددې هسې رنګ زحمت داړو به څه وي؟

فرهاد غر په عشق کښې کند نه صورت کړم
ومنصف ته به زمانیاتي تر ده وي

ده که یار ته وله جوره دشودو کسره
تل روان دوینو رود زما د زړه وي

چرې نه وي رنګ یې هېر کړم په هجران کښې
په وصال کښې به یې څېر یار ته کاته وي

ستا دسترګو خیال پرې ووړي ځکه ژاړم
نرګس تل تروتازه وي چه اوبه وي

په پرېښول به دجهان له غمه خلاص شې
خلاصیدل دغابښ له درده په وکښنه وي

وبه وینې دیاره محمد عبدالقادره!
که دې تل ورپسې دواړه لیمه سره وي

# (۱۸۷)

که فلک لکه آسیا دا نه ئې سر شي
عارف نهٔ دے چه ئې زړهٔ پکښې لړ بر شي

کهٔ آسمان د مسک مزکه نش شي
وابسته ئې مخلوقات د بحر و بر شي
په زړه کاله ئې ژوند ون د گمان مهٔ کړه
چه پکښې د توکل خښتن مضطر شي
خاوړے زړه چه ورته یو بښي له غه پسه
په کاله ئې کانړي بوټي واړه زر شي
که اصلي فقیر د سیوری په سر وکا
هست و نیست به د ورته واړه برابر شي
چه خپل ځان د تلي خاوړے د گدائې کړه
د پلهٔ خاوړے ئې په قدر تر عنبر شي
چه خپل ځان تر چراغ ځار کا بیا وسوزي
کوم ملخ به د پتنگ تر ځایه ور شي
د زاهد مشرب جدا د رند جدا دے
له ماهي به کله کار د سمندر شي

هله لاف د مینې کا عبدالقادره!
چه تر خهٔ دیار په تا شهد و شکر شي

# (۱۸۸)

ماچه لب دشکرلبو دی څیبنلی
لا مې اوس له خوږو لبې ځبله نښلی

ستا دسترګو په خیال هسې رنګه مست یم
لکه څاوی صدساله باده نوشلی

که له سترګو دې روان شي سین دوبنکیو
وران به نشي چه ئې ستا په جبین کښلی

دعاشق دصورت خاوړې دیار مینه
په ازل ئې دواړه دې سره اخښلی

له توبرې سره مې ځان څې چه وکښي شي
څکه ما دیار توبرې نهٔ دې وکښلی

شکایت د بناګسته وُ دخوی مهٔ کړه
تر وفا دبل جفا بنهٔ ده دکښلی

کهٔ بد رنګ مخ پټوي بارې یو رُخ دے
بناګسته دې هرګز نهٔ وي مخ پوشلی

یو دلدار چه دلداري کا بیا مې نهٔ موند
په طلب مې دې ملکونه پسې مښلی

چه مُیٔن شوې غم زغمه عبدالقادره
په غمونو عاشقان دي همیش کښلی

## (۱۸۹)

که بنکاره شی درویشانو عزت ستاسی
گدایان به شی شاهان په عزت ستاسی

د دنیا نوبت، نوبت په نوبت درومی
همیشه دے بے زواله نوبت ستاسی

څه شوی که موخوک نه پیژنی دی او درته
خبردار دی ډیر په قدر و قیمت ستاسی

صبا ورځ چه اجتماع د خلائق وی
په هر ځا به شی ظاهر منزلت ستاسی

هم هغه به د نجات په لوری روان کا
چه پرے شی مهربانی عنایت ستاسی

غم اندوه بنه په نصیب د دنیا دارو
فراغت د زړه خوښی په قسمت ستاسی

ستاسی هومره ډیر حرمت پخپل صاحب دے
چه به نور شی په عزت په حرمت ستاسی

په نصیب به د هغو شی چه نیک بخت وی
د دوو کونو سعادت دے خدمت ستاسی

د راحت امید کوئ اهل محنتو!
خدائے به نه کاندی ضائع مشقت ستاسی

مددگار د گنهگار عبدالقادر شئ
گندے بیا مومی خلاصے په همت ستاسی

## (۱۹۰)

چه په ذرهٔ باندې ئې وا د عرفان باب شي
دا جهان به ئې تر فهمه یو سراب شي

د وحدت دریاب به وینې بنکته پورته — خپل وجود به ورښکاره لکه حباب شي
د خودئ ئې باد چه وُباسي له سره — د حباب نامه ئې لاړه شي دریاب شي
څو وجود د ذرې شته هومره ذره ده — خو چه محوه خپل وجود کاندې آفتاب شي
د هستئ ئې نوم هاله ورباندې بنائي — آمیخته چه له محیط سره سیلاب شي
د عنص د چار دیواله چه را ووځي — آر ویدهٔ لیدهٔ ئې واړه بې حجاب شي
د هر لوري ته چه مخ کا نمونځ ئې کېږي — چه قبله ئې د یار مخ وروځې محراب شي
په حُبل د ستر کوځي تر شرقه غربه — تر نظر د عارفانو تلهٔ شتاب شي

خپل په هله د یار شي عبد القادره!
کهٔ په تا باندې ئې یو مهر عتاب شي

# (۱۹۱)

نهٔ په باغ نهٔ په بوستان په ګلزار ګرځې
خواب ذړهٔ مے هم څورے دے چه یار ګرځې

دواړه سترګے ئے شاهین دی قهر وُبے
سور د ناز په آس د زړونو په ښکار ګرځې

په مقدم ئے د صحرا خار ونه ګُل شی
چه په سیل زما د یار د بهار ګرځې

کهٔ پروت د رقیب وار وو نن زما دے
د آسمان دژرندے دوردے په وار ګرځې

کهٔ رنځور شے خود به درشی طبیب کورته
طبیبان په طلب تل د بیمار ګرځې

د ښڼو په ناوکو ئے ذړهٔ خونبینی
عاشق ځکه آهومن ناقرار ګرځې

د هوسئی غونډے خیل خوب په میرتون کا
د اجل ښکاری په نیت د ګزار ګرځې

ما دولت د ګدایانو له دربیا موند
کهٔ نور خلق د بادشاه په دربار ګرځې

په وصال به آسوده عبدالقادر کړے
کهٔ همیش به دِ په هجر کښے خوار ګرځې؟

# (۱۹۲)

لوئے لوئے غرونه دِ په واوره وسل ودان وی
چه رودونه ئے په مزکه را پریشان وی

په ژوورو مزکو مۀ ووره یارانه
ښے اوبۀ کاندی ترخے بوټیں ئے روان وی

په چمن کښے بد بوټیں ګل شګفته مۀ شه
زاغان ورشی بلبلان ترے ګریزان وی

په هغه چمن ورځه د سحر باده !
چه نسیم ئے په هر چا عنبر افشان وی

چه په راغلۀ ئے د باغ ګلونه واشی
همیشه دِ هغه باد په ملک وزان وی

د تنګ مشرب پیدا کړه په معاش کښے
دهر چا چراغ چه بل وی پرے شادان وی

مبارک هغه بنده چه آخر بین وی
ګل محنت راحت ورتۀ وته یکسان وی

په رموز دِ پرخۀ ووئیل په لب کښے
پرے به پوه عبدالقادره سخندان وی

# (۱۹۳)

چه له مخه ئې آفتاب ماهتاب رخشان دی
په جهان کښې څوک زما دیار په شان دی؟

جمعیت ئې د خاطر په لیده ستا شي
په دا طمع درته جمع څو پریشان دي

چه ئې څوک په کوڅه تیر شي لیونې شي
شیخه! مهٔ ځهٔ په دا لار پری وشان دي

نهٔ یواځې دواړه زلفې زړهٔ راکاږي
د کاکل ویښته ئې لا خاطرکشان دي

د راحت ښیښې به تشې عاقبت کا
هغه څوک چه د محنت جرعه چشان دي

چه په تش کاسهٔ ئې مس د وجود زر شي
درویشان دي درویشان دي درویشان دي

له آفته به د لې څورې خلاص نهٔ وي
چه بدګوې، آزار رسان، بداندیشان دي

خودپرست دیار له وصله بې ګا نه وي
له خودئ ئې بیګانه د دهٔ خویشان دي

آفرین عبدالقادر په ګفتار ستا
چه له شعره د عشق دُر افشان دی

---

ترشکرو نهٔ دي کم عبدالقادره
ترنباتو که خواږهٔ ویلي خان دي

(قندهار چاپ نسخه)

## (۱۹۴)

بیائے نیت د جنجال وشو چه نور کښېنلی راته شماری
یار که ئے تل هسے جفا کا ما به مرګ وته وسپاری

بل که هر څو ښه ناسته وی خدائے دِ نهٔ کا چه ئے ګورم — تر یوهٔ بانړهٔ دکښېنلی د جهان شدٔ واری واری
ستا چه میځوک آشنا نشته فراغت کرځه هوس کا — په هر ځا چه آشنائی د جدائی محمل ګماری
د دنیا په باغ کښې ځائے د همیشه استوګنې نشته — عاقبت به له دے باغه طوطیان ووځی په چغاری
د بلبلو د طوطیانو په ګلونو سیل کیږی — په ګند کښې ئے په مرداره تل قارغان ګرځی مرداری
هر چه ښهٔ ئے له ازله په فطرت کښې ایښی نهٔ دی — څه به بدکارو نه نهٔ کا نور به څهٔ کاندی بدکاری
هر سړے په موافق د خپل همت نظر لرینه — په ورو چارو هیڅکله نظر نهٔ کاندی لوئے چاری
که غمزے د دلبرانو تیرے تورے دی څرخ کړی — هم ورځی په تیرو تورو بے پروا بے اختیاری

زړهٔ د هیچا زینهار عبدالقادره آزار مهٔ کړه
چه په دین او په دنیا به آخر خوار شی دل آزاری

## (۱۹۵)

که د عشق په توره کاڼی په سر ووری
زهٔ به وایم واړه دُر و گوهر ووری
په چوک بانگ محل ئې داد د بوسې وکړ — مړنې پشکال تل په سحر ووری
په تا تیرئې د قدم خاورې خوشبو دی — که په کوئې باندې ئې مشک و عنبر ووری
سرې سرې وُښکې مې له سترگو وینې نهٔ دی — دا نما د زړهٔ له اوره شرر ووری
د رحمت سزاوار زهٔ چه گنهگار یم — باران بویه چه په تږی شجر ووری
د ظالم د سر د تاج لعلونه نهٔ دی — په تندی ئې له دوزخه اخگر ووری
د حاسد جفا زغمه عبدالقادره!
تل د غم کاڼی په سر د ثمر ووری

## (۱۹۶)

کهٔ هر څو بناسته ډیر وو د وکړی
مونږ ته غوره کړې، نور، نورو غوره کړی
ته هم هسې دِل آزاره جفا کار شوې — چه تل ستا له لاسه ناست وو په زړهٔ ستړی
آزاری کهٔ چرې کړې بې زاری مهٔ کړه — اوس یُو مونږ او تهٔ په خلقو کښې نوموړی
چه په لږ جور داهومره ډیر ماڼې کړې — ستا له حاله مې هیڅ نهٔ دی چا ته سپړی
څوک چه نن کاندې وفا له یاره غواړی — ډیر ابله دی چه د شگو پړی غړی
آشنائی د دین کوه عبدالقادره!
د دنیا آشنایان واړه دی نیمگړی

## (۱۹۷)

گوره بیا زما تر څنګ لا کله کښېني
چه په ناسته مې ئې غم له دِله کښېني

چه خندا کا په فریاد د فراق ژړنو — کښېکې دې په اور کښې تل ترتله کښېني
یو یو بوټي د ګل بویه په چمن کښې — چه په ښاخ به ئې شیدا بلبله کښېني
همه واړه ستا د مخ ثنا صفت کا — په هر ځائې چه کښېنلې یو تربله کښېني
له ادبه درته نهٔ وایم چه مهٔ ځه — بنائسته ښځله ځئ ښځله کښېني
هو د یار دې چه ئې کښېنوم ولاړ شي — چه په وخت د نماستي وایم، څمله! کښېني

لهٔ وصاله دِ محروم عبدالقادر شهٔ
کهٔ بې تاځ بله مینه په زړهٔ کښېني

## (۱۹۸)

داخهٔ خوئ دې بنائسته وُ عادت ستا سي — چه همیش وي له عاشقه شدت ستا سي
سرومال ښندل زینت د عاشقانو — عنایت، مهر، نمنځنه زینت ستا سي
نتیجه ئې نورځه هیڅ نهٔ وي بې سوزه — په معنی کښې لکه اور دې قربت ستا سي
چه ښنګ غوندې ځان وسوزي ایره شي — هم هغو ته مُیسّر دې وصلت ستا سي
د حرفونو لو ښې تنګ معنی ئې ډیر سې — په بیان نهٔ اداکیږي صفت ستا سي
ګل څهٔ، خار و خس به هم واړه خوشبو شي — کهٔ نسیم په سحر راوړي نکهت ستا سي
چه شاعر ئې له څهٔ ځین سره تشبیه کا — هو مره نهٔ دې نزاکت لطافت ستا سي
ترحم ئې په احوال څهٔ خوبائیده دي — چه ولاړ دي شپه او ورځ په خدمت ستا سي

کله توان عبدالقادر لري د شعر
وَیوی ئې هومره ډیر محبت ستا سي

## (۱۹۹)

حقیقت د عشق په خلهٔ ویلے نهٔ شی
دغه اوړ بے دِله نوړ سهلے نشی

هسے دروند ورئے بار په ما ضعیف کړ
چه آسمان ورته خپل ځان نیولے نشی

درسته شپه ناړے وهم دیار له درده
همسایه مے په شپه خوب کولے نشی

د زړهٔ مست لړه د زلفو زنځیر بویه
په وسپرین زنځیر دا مست تړلے نشی

په دا باغ کښے د ګلو نه شګفته شول
پکښے یو دیار په رنګ لیدلے نشی

ما دیار د مخ په باغ کښے دی لیدلی
چا وے دا چه تور نرګس موندلے نشی

په هر دم عبد القادر هسے پیالے څښی
چه یو ګوټ ئے کائنات زغملے نشی

## (۲۰۰)

پہ فراق کښے د گلونو پہ گلزار ځی
د بلبل تر خلہ بہ تل نارے چیغاړ ځی

دوداع پہ وخت گرم نہ یم کہ فریاد کړم
روح لہ تنہ آسان نہ دړومی دشوار ځی

پہ فراق د یار د سرو شونډو مے رنگو
سرے سرے وینکے مے لہ سترگو پہ رخسار ځی

پہ دوو سترگو مے تیارہ شوہ نہ پوهیږم
چہ مے دوند د سترگو وشہ کہ نگار ځی

حال لہ دیرہ غریوہ هیڅ ویلے نہ شم
خو هم هسے د کہ خوا لہ یارہ یار ځی

پہ ورو ورو د جدائی مرگ تہ نژدے کړم
لکہ ساہ چہ لہ صورتہ پہ وار وار ځی

د عشق اور د سوختگانو پہ زړہ سکی
پہ سوختہ ترنوړو څہ زړ شرر نار ځی

پوخ استاد بویہ چہ زلفے د یار نیسی
د ناقص یارو دم کلہ پہ تومار ځی

چہ سرکوز پہ تواضع دړومی پہ لارے
تہ بہ وائے سروہ ونہ پہ رفتار ځی

هیڅ پہ بیا رتہ نظر نہ کا پسے دړومی
دا د عمر آشنا څہ بیگانہ وار ځی

ستاد آہ لوخړے دی عبد القادرہ!
لړے نہ دی چہ پہ غرہ د کړہ مار ځی

---

۱ مردان تحصیل کښے د کالوخان نومے کلی پخوا کښے دیو غرنوم .

۲ چہ دیکہ یوسف قبر دے ورباندے .

(۲۰۱)

داغځه اوږدے نهٔ پوهیږم چه په زړهٔ زما بلیږی
دا سیلاب له کومه راغے چه تر سترګو ے چلیږی
نن زما د زړهٔ په ښهر کښے ناره دی نهٔ پوهیږم
چه ے روح له تنه دروی که آشنا لما بیلیږی
څهٔ پښتنه کړے لمانه چه دزړهٔ احوال دِ څهٔ دے
په مثال لکه ماهی دے چه په تیلو کښے تلیږی
د ښهٔ مخ صفت ئے هیڅا لکه حق دے ادا نهٔ کړو
واصفان ئے همه واړه د ملک غوندے للیږی
ځکه مسے رنګ بے قدره صبا ور په ور جاروزی
چه په کوځے د دلبر راشی تر ے ګزر کاندی تریږی
فریاد ونه کړه بلبله! ویے ژاړه څو بېتا شی
د آهار سیلئی راغلے د ګل پاڼړے به تلیږی
د آسمان چه په تندی د پاسه ګرځی لکه ژرنده
د دانو په ځائے سرونه شپه او ورځ پکښے دلیږی
نهٔ یواځے زهٔ اوتهٔ د جدائی په تیغ زخمی یو
په هر لوری عبد القادره! پرهار ژلی دی ګلیږی
د غم شپه دِ په صبا بدله شوه عبد القادره!
چه جبین ئے لکه نمر تر تور وربل درته ځلیږی

## (٢٠٢)

پښتانه کوتاه اندیش دي — سود غلیم ته، زیان د خویش دي
نوشدارو پکښې نایاب دي — واړه زهر، واړه نیش دي
حریصان، طامع، سترګ وړي — په بدخوئ نمک د رویش دي
مدکان ئې آدم کشي دي — کفرکشي کا چه درویش دي
پیر مرشد ئې جهالت دي — نه په دین دي، نه په کیش دي

## (٢٠٣)

که هر څو ئې د دنیا دولت ډیریږي
څه په کار چه بقا نه لري تېریږي

بادشاهي د اورنګزیب وآزاده ته — چه تل نه وي په خسرۍ نه پیریږي
چه یو دم ئې له خاطره جدا نه وو — دم په دم ئې اوس هغه یاران هیریږي
عجب وار د کودکئ بیا د ځوانئ وو — په پیرئ ئې اوس دا دواړه ارمانیږي
تللي عمر هرګز نه راځي په بیا رته — که د اوښکو په ځائې تل وینې بهیږي
هر عاشق چه ویره کاندي له پیغوره — تر هغه د ډیر غمونه چاپیریږي
د ګردش ناوک ئې هسې ځان تک دي — چه ئې زخم په دارو هم نه رغیږي
د نااهلو ته وفا د یار جفا شي — چه په لږ تغیر له یاره نه سیریږي
بوالهوس د دوصال ته طمع نه کا — چه په عشق کښې به په سرو مال ویریږي
که هغه واړو و، که دا عبدالقادره! — ننداره کوه چه څرنګه تیریږي

سرلوئ د عاشق ده عبدالقادره!
چه د یار په غم کښې شپه او ورځ ژیړیږي

## (۲۰۴)

داجل راتلهٔ سری ته ناگهانه بلیدل دروح او تن دی
گنده وی چه سره بیا په یوه ځائے شو په هغو زمونږ سلام چه په وطن دی
په صبا به بادګوره چه سته یوسی دا ګلونه چه نن ورځ په شګفتن دی
دا خندا ژړا ے خوئی د لیونی دے چه هوښیار دی همیشه په ګریستن دی
هرګدا ئے چه آزاده وی ترے قربان شه بادشاهان د روم د هند که دختن دی
ما تول د بت آسان دی، مردان کوم دی چه مشغول د خپل وجود په شکستن دی

نن نسیم عبدالقادر ته سحر وو ے
بوئی ئے اخله دا ګلونه په رفتن دی

## (۲۰۵)

چو زلف عنبرین را پیچ وخم کردی کرم کردی دلم را از سر نو بند غم کردی کرم کردی
چو بکشو دی نقاب از رخ نمودی عارض زیبا شب اندوه مارا صبح دم کردی کرم کردی
بحمد الله چون قتلم را بدیگر کس نه فرمودی سرم را چون بدست خود قلم کردی کرم کردی
بروئے عاشقان زار عمرت درفزون بادا جفاها گفتی وجور وستم کردی کرم کردی
سراسر محنت وغم بود در ملک وجود ما چو بازم ساکن ملک عدم کردی کرم کردی

## (۲۰۶)

تهٔ چه زلفې په رخسارو خوروې — دریو هیرم جهان خور ما خوروې
چه دِ واغوستې دخیال جامې ګلګونې — خپل مېن په سرو لمبو نسکورهٔ وې
زړګې! سر زما دیار په قدم کېږده — کهٔ خوښې ئې له رفتاره پوره وې
هغه مخ چه دوصال په غوړو غوړوی — دهجران په تاؤ ئې ولې سپوره وې
کهٔ دعشق په توره ووژنې راضي یم — زما عشق د سر په ویره نوره وې
پېښېن غابښونه په خندا را لره راشه — کهٔ به مخ د رقیبانو توره وې
بس دې یو د آشنا غم عبدالقادر ته
نور غمونه بانډې څهٔ تنبوره وې

## (۲۰۷)

پلنې برېنډې سر برېنډ ګرېوان پاره وې
په طلب ئې په ملکونو آواره وې
په ستنه شوې د دُنیا له کاره وباره — ناګڼلې، ناشمېرلې، هېڅ کارهٔ وې
له دې عقله هېڅ فائده حاصله نهٔ شوه — لا یعقل دېونیو په شماره وې
د آشنا دِغم په سین ګنې ئې شهنا کړې — د جهان دِهوسونو کناره وې
د عالم په نیک وبد غرض نهٔ وې — بې جوابه بې حجته بې چاره وې
په هر ځائې چه کښېنې دی عبدالقادره!
په حیرت ئې د جمال په ننداره وې

## (۲۰۸)

کهٔ خبر شې په لذّت د ويرانئ
اور به پورې کړې پخپله وودانئ

ستا په تله مې غم اندوه نصيب د زړهٔ شو — دريغه دريغه رابه نهٔ شې نادانئ
جمعيت مې د خاطر په ديدن ستا شي — بې تا خلاص نهٔ يم يودم له پريشانئ
ناکامي ورځنۍ ښهٔ ده په څو رنګه — چې مې وليدې د هر چا کامرانئ
غوړ تيره کا آئينه غبار ئې صافه — د مخ آب زيا توي کړ د دهقانئ
عاقبت به دينادار له دُنيادار ومي — تش لاسونه زړونه ډک د پښيمانئ
په هزاره دشوارئ کښېوزي په لاس کښې — راشه ګوره څرنګ څې په آسانئ
چې په عقل غوبانهٔ شپانهٔ ترې ښهٔ دي — په دا دور هم هغه کاندي خانئ

دانا ځان پوهه کړي عبدالقادره
ته چې ځانته دانا وائې نادانئ

# (۲۰۹)

په وار وار ئې په هر چا وکړې باز ئې
د جهان په وركړه هيڅوك مه نازئې

په آخر به ئې لتاسو غلمان و ړی
د اخلاص اُمید ‌هيچا ته پاتو نهٔ شو
بې هوده کيله مندى كا له آسمانه
سرفراز ئې سرنګون درو مى په بېكته
په معنی كښې مرګ ئې نشته تل ژوندۍ دے
كوره څرنګ نازبردار دخاص وعام شول

په خپل لاس ئې په خپلوانو وبازئې
آشنائی ده اوس همه مهمازئې
جهان ډوب كړې دغمازو غمازئې
رابنكاره شوے د دُنيا سرفرازئې
دغو چه پاتو شي نيك آوازئې
چه ئې تل كول كبرونه طنازئې

له اوله بلبل باز وے اوس باز باز شوے
عمر لاړ عبدالقادره په بازئې

# (۲۱۰)

ما د مينې څوئ له ځايه دے راوړے
تهمت اوس راباندے وائي روغ وګړے

په هغه نفس که ئې وخيږي راضي يم
چه مې بې ديار ديادو سره نغړے

مُرده دِ زړه، له سينې نه زړهٔ بېرون کا
يو ساعت په کور کښې نهٔ پرېږدي څوک مړے

بيا نهٔ چه راز مې وخپل يار وته ښکاره شو
نهٔ اغيار ته چه هرچا وته ئې سپړے

ستا د رحم ترسيلاب به پورے څهٔ دے
دا زما ګناه مثال لکه خسړے

په مانړی بې هغه هم راڅخه يووړ
چه را پاتو وو د صبر چړے پړے

جمعيت چه له دُنيا په دُنيا غواړي
هغه غړي په معنیٰ د شکو پړے

په حرص به ئې نهٔ لږ نهٔ به ئې زيات کا
خپل قسمت ئې دے هرچا لره ورکړے

په خاکونو به ئې وا ګلِ صد برګ شي
چا چه زړهٔ پاره پاره وګور ته وړے

که درست عمر د يار غم عبدالقادر کا
خدائے دِ نهٔ کا چه به شي ورځني سړے

# (۲۱۱)

د همه بناد یو سر د یار الم دے
چه فریاد ورځنی کاندی هغه کرم دے

ته و دِ زړهٔ هومره ستم کوه دلبره! — په تندی مو قبول کړے ستا ستم دے
شکسته په شکسته باندے عزیز وی — ځکه زړهٔ مے ستا و زلفو وته خم دے
مګر ستا د مخ نمر وخیژی د دنیا شی — ګنړه درست جهان پما باندے تورتم دے
د بنادئ امید دِ لرے کا له دِ لـه — چه په تا باندے مئین شه تل ئے غم دے
آئینه چه ستا د مخ کوری سکندر شی — چه په لاس کښے جام د میو لری جم دے
عاقبت به مخ تورن لکه قلم شی — هر سړے چه دوه زبان لکه قلم دے
تر ایذاء ئے لا پخوا سزا د کړه و ده — په معنیٰ کښے ظالم مار دے یا لړم دے

منت بار د یار د خیال عبدالقادر دے
چه همیش ورسره مل په غرهٔ په سم دے

---

ئے اقتلو المؤذی قبل الایذاء (حدیث شریف)

## (۲۱۳)

نه ئې واځې د لاله په سینه کې دے
په دا باغ کښې چه بې کې دے[1] هغه کې دے

چه په تخت د قناعت د پاسه کښیناست
کمینه بنده د دهٔ کاؤس[2] او کې دے

هر چه خوړے هغه شاشی نور به پرېږدے
دا دُنیا د مهمانئ ئې بنانکے دے

په صورت ئې پرهر ونه زړهٔ سورے کا
د هجران په لاس کښې هسے ناوکے دے

چه بدخوئ د رکښې پیدا شی زړهٔ ورک کړه
بوټے وخېژی له مزکے څوتنکے دے

په ورکړوئے مهٔ شه خوښ بیا ئې اخلی
دا جهان ترملک لا په خوی سپکے دے

گُندِستا په فضل خلاص عبدالقادر شی
په طاقت کښې خو هرګوره تپکے دے

---

[1] په دے بیت کښې ورومبے کې ~~عربي دے~~ یعنی داغ - آخرنے کې
یعنې څوک - په دویم بیت کښې کے دپخوانی بادشاه نوم دے - (جیبی)

## (۲۱۳)

که د درست جهان بادشاه شې په هوا ځې
عاقبت به له جهانه بې نوا ځې

که حشمت د سکندر تر حشم دېر شي
خالي لاس به ځنې بیا د دروې یوا ځې

چه پټا بانه مېین ورته د شا کړه
له علم سره دا هسې خوا په خوا ځې

د غفلت پنبه را وباسه له غوږ دو
چه کنړو غوږونو کونړ نه دي وې شنوا ځې

ستا به دا خندا خندا شي د هوښیارو
چه آخر به دېر ژړا به دېر زګیروا ځې

که خاطر د تعلق له باره خلاص کړې
د رحلت په وخت به ها له بې پروا ځې

په عزت په حرمت را غلې و دنیا ته
په بد خوئی ترې شرمنده خجل رسوا ځې

څو قاصد لا د طلب را غلې نه دې
بهتر دې عبد القادره چه پخوا ځې

## (۲۱۴)

د هغو چه اور بل شوې په کو ګل دې
د زړه سودئې د آهونو په وګېنل دې

دېر سېین ئې جله بل کړه نه صبر یږي
بېلتون هسې رنګ لا خېژ په بېلول دې

زړه مې د جدائي په اور سوزیږي
که په زړه کښې مې دیار محبت بل دې

څوک زما تر یاره بنه دي په خلقت کښې
که جفا راسره کا ندي بخت مې خپل دې

تر و په څو به ئې خلاصې له مینې کیږي
په ازل چه اور نصیب زما د دل دې

له یوه چراغه دروي بل چراغ سته
پروانه وته مثال ځکه حاصل دې

څه باور ئې په یاري عبد القادره
چه چاپېر تر هر ګل لکه بلبل دې

## (۲۱۵)

دریغه بیا په ګلو ګشت وکړې صبا شوې    چه په باغ کښې رنګارنګ ګلونه واشوې
د شبنم پیالې ئې نوشې لبالب کړې    له مستئ ئې د هر ګل قمیص قبا شوې
تور بورا تر هر ګل قربانیدې    د بلبلو په هر لور باندې غوغا شوې
مخامخ له یاره کښېناستې یو ساعت    د هجران غمونه واړه پسې شا شوې
که په کاڼی د هجران میده شوم څه شو    د ځنا په دود خو وصل ستا له پا شوې
ما به ځان لکه پتنګ ترې صدقه کړ    که چراغ ئې د جمال راته نما شوې
یار له مانه لا وما وته نژدې دې    که تر میان حجاب پاره پاره زما شوې
"زه" او "ته" په محبت کښې نه ځائیږي    "زه" او "ته" له میانه ووتې یکتا شوې
خود ئې پریږده نور راځه عبدالقادره
که د زړه دې چه زه ستا شوې ته زما شوې

## (۲۱۶)

په وئیل د کوم بې رحمه ځیګر ور ځې    چه دا هسې ډېر پس راګشې بیا زر ځې
د عاشق د سترګو نمر نه حجابیږی    ولې هسې شان مخ نغښتې په میزر ځې
د بزرګئ ئې په مقام په هله کښېنې    که د ور کړه د مړانې په ورز ځې
د هوسیو سترګې تورې د باز سرې دی    خونریزی تر نورو سترګو لا زر ځې
دریوهیږم چه په سل مصلې ننګ کړې    چه د ونځې وته ډېر ډېره قلندر ځې
تصدیع مه کړه ګشته کا ئ وته په سر ځې
که په وژله د بیدل عبدالقادر ځې

## (۲۱۷)

دیوه په غولي وير د بل سرود دے — څرته غم څرته ښادي دا دنيا دود دے
په نور څه ئے صحت نه کيږي له درده — په هجران کښے د يار ياد د خاطر سود دے
په ډيروالي ئے لا غم په سري ډير شي — بيهوده دے په دنيا پسے مبنود دے
رنګينه شعر ے مه ګڼه خبير ے — دا دوان زما د زړه د وينو دود دے

څرے نه چه خالي لاس وړ ځئ وو ځے
خريد کړه عبدالقادر! بازار تود دے

## (۲۱۸)

مخ[۱] په بيدے بيديا وينوے ژړے — د صحرا د ونو پانړے پښت خوړے
چه له دوړه د ښمنتن وړ تلے بل لور تله — لکه سپے په کانړو لوټو ئے شړے
د جهان په خوبو هيڅ غرض مه وے — کل ترڅه ے د خوبو غونډے نغرے
د حرص د سي غابښ مات په قناعت شوے — په زنځير ئے بيا د صبر وتړے
عاقبت به هر بادشاه په ايرو پريوځي — که ملنګ وي په سپيرو ايرو لړے
په مانوم د بادشاهئ مه وے پوړے — خوشامد ے مه کړے چا، تل ئے زيړے
هر ظالم به د دوزخ په اور کښے وينے — لکه سپے په زنځيرونو ځکړے

هر کاره به بهادر شاه پچيس ے خبير کا
حال عبدالقادره مه وايه سپيړے

---

[۱] دخوشحال خان خټک ديو غزل مطلع ده چه

سر په بيدے بيديا وينوے ژړے — په صحرا د ونو پانړے پښت خوړے

عبدالقادر خان خټک دخپل هم دغه غزل مطلع وړاندے په يو ترجيع بند کښے هم استعمال کړے ده -

## (۲۱۹)

ته څه هسې بې نظیره دلبر نه ئے — چه ښکاره په درست جهان لکه نمر نه ئے

په هر کلي په محلت خبرے ستا شي — هسې نه چه په عالم کښے سمر نه ئے

په پیاله چه شونډے کیږدے نو عسل شي — بیا به وائے چه په شونډو شکر نه ئے

د سپوږمۍ بناښت په ستورو نه زیاتیږي — حاجتمند د لعلو دُرو ګوهر نه ئے

آسمانونه مے د آه په لوګي تور شول — ته لا هیڅ زما له سوزه خبر نه ئے

که د زړه دے چه توانګر شے طمع پریکړه — څو د طمع چا ته شته توانګر نه ئے

پهوړه، کچکول، شړۍ خو ډیر متاع دي — څو د ستن په کنډ چه شته قلندر نه ئے

په جهان د څکه بوئ د خوبۍ نه ځي — چه بیدار لکه غنچه په سحر نه ئے

ښه غزل د ته ښکاره عبد القادر کړ
له معنو ئے لذت واخله که کر نه ئے

## (۲۲۰)

هر عاشق چه طمع کاندي د وفا ے — تر وفا د لا خوښیږي تر جفا ے

په رښتیا زما د مخ عاشق هغه دے — چه د مخ ئے نه داره کا تر قفا ے

دا د خیال شاطر مے ډیر ملال راوړو مي — ګوره بیا په کوم دیار بند شو آشنا ے

ستا زحمت د محبت دے طبیب ووے — بے دیدنه به روغ نه شے په دوا ے

د بنامار د خلے مهره وکښل محال دي — ستا په تورو زلفو بند شوه مدعا ے

د آشنا د آشنائي قدر مے نه دے — که په اور د بیلتانه سوزم سزا ے

ستا د کوڅے پوښتنه کاندي نه ئے موږ — څکه هسے سرګردان ګرځي صبا ے

زما وصل د هغو عبد القادره
چه خپل سر شندي د وصل په بها ے

## (۲۲۱)

صدقه شمه ساقی ستا تر پیالے
چه دِ خلاص کړم د جهان له کشالے

چه ډیر ډیر د جدائی له غمه ژاړم
په رخسارو کښے ے سارے شوے نالے

په یارئ کښے به حاله صادق باله شے
که تو مرگه د یارئ پت وُ پالے

یار هغه چه په محنت کښے یاری وُ کا
ډیر یاران دی په ساعت د نوالے

محبت د عاشقانو عظیم کوټ دے
پروانهٔ کا د پیغوړ له اتهالے

ساحران ئے د چشمانو دین ایمان وُړی
سحر گری کهٔ زړونه وړی د ښنگالے

په ښکاره نارے وَهے عبدالقادره!
په خاطر کښے به څو غم د عشق گالے

## (۲۲۲)

مخ د کله نمر دے، تر نسبت ئې نمر مثال دے
څوک به هسې وائي، چې نمر ستا د مخ مثال دے

هائے خدائے د یاره یو دم مه د ره ومه لمانه
یو زمان بېلتون ډېر ما خوار بېلتون د کال دے

سخت وی په سړی باندے نزدے هجران ترلړے
یار چې لیده شي تر دکنه تیر دیوال دے

خلاص ئې له یوه جنجاله نه شوم بل را واخلی
هر زمان لما سره په سل رنګه جنجال دے

وائي چې وبال دے چې نظره وبنه مخ ته
ما په دواړو سترګو قبول کړے دا وبال دے

حسن یو اثر دے چې په مخکښې د چا شي
نه چې کړه وړه بنه لري هغه صاحب جمال دے

دم که مې همدم دے هیڅ بکار زما را نغې
لېکن چې دلاسه مې د خاطر کا د یار خیال دے

څه برکت ناک دے د عشق خم ورته حیران یم
څو خلق پرے مست شه دے لا هسې مالامال دے

هر چې سوخته ګان دي په خاطر به ئې ګډیږي
اور مې د سینې چې سر وهلې ترمقال دے

ذره لري تو انګر عبد القادر تر بادشاهانو
څه شو که په کور کښې دنیا نه لري کنګال دے

(۲۲۳)

نن په درست جهان کښې غوړه يار زما دے
په ديدن ئې سر بسند نه کار زما دے

دخزان ويره ئې نشته تل تازه وي
کښتلے مخ ئې هميشه بهار زما دے

په وار وار نور وپيالے دمئو نوش کړے
ساقي اوس ئې وما راکړه وار زما دے

وُئې مه ئې شلوے زما له غاړے خدايا!
دخپل يار د زلفو تار زنّار زما دے

دمرچا په ګردن پروت دمينے بار دے
ترهمه وار و چه درون دے بار زما دے

چه يو دم ئے له خاطره نهٔ بيلين ي
لا د تانه د تا غم غمخوار زما دے

درسته شپه ئې عشق بازي کوم له درده
په داخهٔ شو کهٔ جدا نګار زما دے

کهٔ دسته دګلو راکا هم به خار شي
په ازل چه نصيب شوے خار زما دے

بنا ئسته لکه ګلونه د سپرلي دي
پرے هميش لکه بلبل چيغار زما دے

عاشقان به د پتنګ غوندے پرے سوزي
په معنیٰ کښې سرے لمبے اشعار زما دے

کهٔ کرم را باندے کا عبد القادر يم
غم ئې نشته کهٔ حساب کا زار زما دے

## (۲۲۴)

ګاه په خانقاه کښې، ګاه مقیم په میخانه يې
هیڅ درنه پوهیږم چه عاقل که دیوانه يې

کله له هندو له مسلمان سره ځلوی کړې
کله له همه واړه عالمه بیګانه يې

ته که لیونې د آهو چشمو مینه نه کړې
ولې شپه او ورځ لکه غرځه په ویرانه يې

واځه راته" ووایه چه د جان که د جانان یم"
ځار شم ستا تر سترګو هم مې جان هم جانانه يې

شونډې دې یاقوت دې، درګوهر دې سپین غاښونه
سرتر پایه درست د بادشاهانو خزانه يې

څوک دې له لیدو، څوک له خبرو مراد مومي
څوک دې له وصاله، د همه خلقو ستانه يې

باغ دې خط پکار دې، خو دې مخ لکه ګلزار دې
یار له راغلې د ګلونو په بانه يې

لږ به ستا له مینې په رموز درته ووایم
مینه په آروید وکه د مجنون په افسانه يې

مې د دځل یار د شونډو څښلی دی پوهیږم
ځکه په ویل عبدالقادره! مستانه يې

## (٢٢٥)

بېهوده د چا په چا باندې هاځې دې
په چل ځان که ژړا کا د ژړا ځائې دې

گذشته عمر همه په لهو تېر شه
آئنده که په دا شان ځي زما وائې دې

که د جاه که د دولت که زویه وړو نړه
زړه بېرې مه تړله عاقله تش نمائې دې

محبت د مولا کړه، مولا باقي دې
په فاني چه محبت کاندي لږ رائې دې

نن سحر صبا بلبل ته نصيحت کړ
هغه گل وړ پسې غواړه چه دېر پائې دې

دهوا په اس سواره، په فهم درومه
په دا لار به هاتي نښلي هسې لائې دې

لاف د خدائې د بندگئ کړه، محکوم نوړو
د هر چا چه حکم وړې هغه د خدائې دې

که ئې شپږ اقليمه وي چه اووم غواړي
دهغه ته بادشاه مه وايه گدائې دې

دهمائې د سيوري څه پرواه لريته
چه قانع په خپل قسمت شه خود همائې دې

دهغه شاهسوار پسې وړه عبدالقادره!
چه د اس ئې د افلاک د پاسه پائې دې

# (٢٢٦)

محبت په کښلیو کا تمام وګړے
چا دا اور دے ښکارہ کړے څنو نغړے

ثمره ئے خواه مجا ز خواه حقیقت دے
په انسان کښے دے کړلے د عشق زړے

زما داغ عارضی نه دے چه به ورک شی
د لاله غوندے م داغ ځائی داوړے

ګل ګویان په نغمه څیری د بلبل کړه
نسیم نه دے ګریبان د غنچے سپړے

رابه ووځی عاقبت د غم له چا ره
چه نیولے ئے په لاس د مینے پړے

نه دے مرد چه واخلی، ورکا، مرد هغه دے
چه کښی پخپلو غړیو پوخ کا غړے

چه څوک نه کاندی آزار، له چانه اخلی
تر کسری تر حاتم ځان هغه تیر کړے

که سفله ښنتی د جاه شو، په داخه شو
په معنی بربوکئی پورته کړه خسړے

زه خټک د یار په غم تازه تازه یم
غوریه خیل رحمان که شو ور ځنے ستړے

# (۲۲۷)

یار راحتي لاړ شو، دمه کړم په ګفتګو سے
ګل د ګلاب تېر شي بُوئي اخست شي له اوبو سے

نمر وَته نظر کړم چې مې یاو د آشنا مخ شي
نو مې میاشت ته ګورم چې را یاد ئې شي آبرو سے

پاس مې په تندي کېږده قدم د چنبې ګُله
سپین نازک په مثل تۀ زما د یار د رُو سے

یار اغلې د یار د کوځې یار اغلې له خلده
اې د صبا باده تۀ چې مې رنګ خوشبو سے

شنه وُنه مشې، چې فائده ترې مونده نشي
وُنه شه بار داره د ګل یار په لمن تو سے

غم اندوه په بخره د مغو چې عاشقان دي
خوږې کړه زاهده چې له عشقه ئې بخښو سے

نۀ بنائي وسپوته د انسان خېرې بزرګې
تۀ چې له رقیب سره مدام په ګفتګو سے

وارو ه بله نشته داوینا وایم څرګنده
یا به ئې خلۀ کښېږدم کرم یا به وینې کړم پر تو سے

زرګې دِ خجل کړې تریانۀ پورې ګل وارِه
تۀ چې په انګڼ کښې په خرام په تګ و پو سے

ستا ده دبل نۀ ده زما خلۀ عبدالقادره!
ولې ئې داهسې د حرص په جُله ژو سے

## (۲۲۸)

وائیم وائیم چه چانهٔ وے بیا به وائے
تل د ښو عمل کوه، عمل به بیا سئے

کهٔ په دېر مښود دولت دُدُنیا قبول کړے
واړه سعی دِ ضائع ده چه نهٔ پا سئے

د نعمت کهٔل آسان ساتل ئے گران دی
فهم وُکړه، چه کهٔلی نهٔ کړے باسئے

ځان غبار کړه دعغهٔ صبا دَ لار ے
چه گذر په کوُڅه کا د دلربا سئے

دواړه پښے زما په خوږو سترګو کیږ ده
د بیمار و سترګو کښے دی ستا پا سئے

ستا په مینه باور څهٔ عبدالقادر کا
چه میخوک درنه پوهیږی چه دچا ئے؟

## (۲۲۹)

چه حجاب ترمینځ زما، زما دُرب دے
اول زهٔ، دوئم عالم، دریم سبب دے

تر شیطان چه لا غلیم زمونږ دُدین دے
اول نفس، دویم شیطان، دریم غضب دے

چه سرے پرے دوست دښمن وته عزیز شی
اول حلم، دوئم جُود، دریم ادب دے

دادرے درده خدایا واخلے له درد منده و
اول غوږ، دوئم لیمهٔ، دریم سروب دے

چه دادرے څیزونه پریږدی مُراد موی
اول نام، دویم آرام، دریم طرب دے

ودانی د کائنات ده په درے څیزه
اول مِن، دوئم غنم، دریم عنب دے

چه مطلوب ته رسوی عبدالقادره!
اول صدق، دویم شکیب، دریم طلب دے

## (۲۳۰)

نن مې بيا تر بادشاهانو زيات دِماغ دے
چه ساقي راته ولاړ په لاس اياغ دے

چه يې داغ د غلامئ راباندې کښيښو
افتخار مې په دوه کونه په دا داغ دے

د نړا ئي يې نۀ په نر، نۀ په سپوږمئ شي
د عاشق د غم دَ خُونې، غم چراغ دے

د اُميد ګلونه زر پژمرده کيږي
چه دائم تروتازه دے، د ياس باغ دے

د تشويش په تله يې لا تشويش زياتيږي
فراغت مې د خاطر په نۀ فراغ دے

بنۀ په بنۀ باندې مئين وي، بد په بدو
طلبګار د بازو باز، د زاغو زاغ دے

چه د خلے وعدے کوے عبدالقادر ته
دا وئيل دِ په رښتيا دي، که دِ لاغ دے

## (۲۳۱)

چه دا هسې هوښياري کړې مجنون نۀ يې
لا په مخ د ښاسته وُ مفتون نۀ يې

بيا به نۀ موے وصال د الف قدو
چه په مينه کښې يې خم لکه نون نۀ يې

ستا په سترګو مې سوګند دے چه له ياره
چه يو دَم مې له خاطره بيرون نۀ يې

د رقيب وئيل اثر درباندے وکړ
مهربانه نن پښان د پرون نۀ يې

عاشق شوے په ڃا نۀ يې معلوميږي
چه په غم د عاشقانو محزون نۀ يې

په جذبه مې د عشق وُ ځکوُ ځان سته
ما موندلے په تعويذ په افسون نۀ يې

څو سختي د زړۀ لرے عبدالقادره!
هومره تاؤ د عشق نۀ غمه څنې ستون نۀ يې

## (۲۳۲)

محبت په تور او سپین راغلې نهٔ دے
په اصیل او په کمین راغلې نهٔ دے

صد ساله مومن کافر، کافر مومن کا
په مذهب په کیش په دین راغلې نهٔ دے

عشق عطا ده ازلي چه په چا وشي
په ارشاد او په تلقین راغلې نهٔ دے

بے هوده په عشق کښے سوال کوي د صبر
د دے خواست هرګز آمین راغلې نهٔ دے

په راتلو ئې بنائسته د مزکے مخ شهٔ
په دا شان څوک په زمین راغلې نهٔ دے

په دُکان د عطار هومره خلق پیښ وي
څو په زلفو عنبرین راغلې نهٔ دے

نهٔ تنها عبدالقادر لټا زړهٔ خوږین وړي
څوک لټا نه په زړهٔ خوږین راغلې نهٔ دے

## (۲۳۳)

نهٔ پوهیږم چه په څهٔ دِ زړهٔ آزار دے
چه دا هسے خپل پردے له ما نه زار دے

زهٔ دِ ډېره جفا وړم د رباندے سپک شوم
ګنړه کوم سرے لمانه وفادار دے

وے ئې "تن به آزمائش کوم د ښوروو"
بنهٔ حاضر جواب مے کړې "بنده تیار دے"

له پتنګه محبت د شمعے ډېر دے
چه اول ئې په زړهٔ بل د مینے نار دے

په رښتیا وئیل دګیر په دروغ خوښ وي
همیشه د منافق سړي دا کار دے

مومن ځکه مقام نهٔ کا ترے تیریږي
دُنیا پل د آخرت دارالقرار دے

ننداره مے د جهان د چمن وکړه
په هر دَم په چا خزان په چا بهار دے

هیڅ پرواه نهٔ کړم له چا عبدالقادره!
په ښکاره نارے وهم فلانے مے یار دے

(٢٣٤)

څه په سیل د باغ لاړنه ئې چه را شې
چه مې ووینې له ورایه په خندا شې

زه له شوقه استقبال ته وروان شم
ته لما غاړه غړیه خوا په خوا شې

رنګا رنګ د باغ میوې ګلونه راوړې
ماجرا د تلو راتلو وائې ګویا شې

که په زړهٔ باندې مې غم واندوه پروت وی
په نفس ئې تار په تار کړې غم ربا شې

زهٔ دِ درسته شپه څیرڅیر و مخ ته ګورم
ته ناظر وخپلو پښو ته له حیا شې

چه خوب درشي سر زما په زنګون کیږدې
د غنچې غونډې ودهٔ په غیږ زما شې

زهٔ دِ مخ ته نظر کړم په رپ رپ ژاړم
چه آخر به یوه ورځ لما جدا شې

زما ونښکې په رخسار دِ تا پریوځي
ویښبن له خوبه لکه ګل په شبنم بیا شې

په رومال مې سترګې وچې کړې داړه راکړې
زهٔ فریاد کړم ته زما په دلاسا شې

ټینګوې ژړا زما د زړهٔ دپاره
چه غړیو زور درباندې وکا په ژړا شې

زهٔ ترتا اول مرګ غواړم، ته له مانه
زهٔ وتا ته، ته وما ته په دعا شې

اې زما مینه لاړې هسې ملک ته
لا عجب دې که په خوب کښې را نما شې

مګر فضل د خدائې وی عبدالقادره!
چه له یاره مشرف په وصال بیا شې

## (٢٣٥)

لکه زهٔ په یار مفتون یم، بل به نهٔ وی مفتون هسې — لکه زهٔ پسې محزون یم بل به نهٔ وی محزون هسې

پرون غیبن په غیبن له یاره نن ترمنځ لرے ملکونه — دا انصاف د زمانے دے، چه نن هسې پرون هسې

په قیامت به هم په هوش، د الفت لیونی نهٔ شی — چه به روغ شم بے دید نه زمانهٔ دے جنون هسې

خط په مخ د دلبر راغے، شور د زړهٔ په ښهر کښې شهٔ — چه د حُسن بادشاه لیږی دے د خط د مضمون هسې

آئینه د چل زنګون وما ته جام جهان نما شوه — ځکه سر لرم تل ایښے د فکرت په زنګون هسې

په کاته د سترګو زړهٔ وړی په خبرو ځنی صبر — د جهان په مخ به نهٔ وی سحر هسې افسون هسې

د دُنیا په غلیمئ کښے عیسیٰ وخوت و آسمان ته — په دوستئ کښے ئے لاځی تحت الثرىٰ ته قارون هسې

د ژوندون فائده داده چه لیده ئے کوی د کښلیو — چه ئے دا فائده نهٔ وی مرګ بهتر تر ژوندون هسې

دا غزل په پښتو ژبه چه بیان عبدالقادر کړ
دروغژن یم که بے خانه وائی بل یو پښتون هسې

---

ئے
لکه زهٔ په یار مئین یم بل به نهٔ وی مئین هسې
لکه زهٔ پسې غمژن یم بل به نهٔ وی غمژن هسې (خوشحال)

عبدالقادر خان د خوشحال خان د غزل قافیه بدله کړه او ځنو د عبدالقادر خان همعصرو او ځنو د هغهٔ نه وروستو اووهٔ اتهٔ شاعرانو پرے طبع ازمائی وکړه۔ لکه صدر خان، محمدی صاحبزاده، معزالله خان مومند، عثمان، اودل، اشرف او ځنو وغیره۔

## (٢٣٦)

اے چہ پہ قد سروہ پہ بنۀ مخ گلزارہ ئے — تۀ پہ دا بنائسُت دکوم نیک بخت نګارہ ئے
سرۀ نمری اغوستی، ولول زلفے سترګے تورے — خیں دِ وی چہ بیا دچا پہ تاخت تیارہ ئے
هیڅوک دِ مخے دبنائسُت نشتۀ پہ جهان کښے — هئ توبہ لتاچہ تۀ ددیرو یارہ ئے
تل دِ دوارہ شونډے پہ نوشل دوینوسرے دی — زړۀ پہ چا نۀ سوزے تۀ یوځۀ خونخوارہ ئے
حُسن دے کۀ خیال دے، کۀ دماغ کۀ مکین ونہ — تۀ پہ دا خویونو پہ عالم اوُخارہ ئے
نۀ مے پہ بل کښلی نظر کړے، نۀ پہ ګل دے — بیا پہ کوم ګناہ داسے شان آزارہ ئے
څرنګ بہ باور عبدالقادر ستا پہ یارئ کا
یو ساعت ئے یارہ، بیا پہ بل ویزارہ ئے

## (٢٣٧)

کہ پہ حُسن نۀ وی دا ښکلی ملوکے — تروے ولے ھورے شوے ملُوکے
دعاشق ترزړۀ ئے وو یستۀ منګوسے — دوارہ سترګے ئے شاهین بازہ ئے نُوکے
دهجران لہ دردہ هیڅ سرے خلاص نۀ دے — توک پہ وړو وړو آشنا ژاړی څوک پہ کوُکے
دفراق پہ لمبو زړۀ سُورے سُورے شو — چہ بنکارہ ئے کړے ویښتو ترزنے څوکے
چہ ئے ونہ میانہ زموښ دِلبر دہ — ونور خلقو وتہ پرینبے لنډے بُوکے
عاقبت بہ خپلہ بڼیرہ کړی کسکرہ — چہ پہ لوری دآسمان غورځوی توُکے
پہ جفائے صبر کړہ عبدالقادرہ!
پہ جهان کښے کښلے نشتہ نیک سلُوکے

## (۲۳۸)

ماهر ګز په درست جهان کښې نور ے ستر ګے
لکه ستا ليدلی نهٔ دی تور ے ستر ګے

بيهوده په غزاله وُ پسې ګرځے | زما يار لره راځه کهٔ ګور ے ستر ګے
چه فائده ئے د بنهٔ مخ ليد ے نهٔ وی | دمغوسرپو ښے دی کور ے ستر ګے
نهٔ دِ شرم شی له پيره نهٔ له ميره | ستا په دود به دچا نهٔ وی سپو ږے ستر ګے
ثوابت ئے تر نظره سياره شی | چه ئے سر وی ګرځيد ے تور ے ستر ګے
چه جهان مے ئے په ستر ګو ليده ، لاړ شو | نوز مے خدائے کاله عالمه پور ستر ګے

په ديو ستر ګو به ئے ځير عبد القادره!
نهٔ ګرے نور ے په خپل مخ کره پور ے ستر ګے

## (۲۳۹)

اے په حُسن ترهمه ښکلو اَو ے | بيا دِ واخستے ناسازے په لاس و ے
په وار وار د ډېرو زلفو دور تير شو | ستا په مخ به تل پرتے نهٔ وی ولو ے
د عشق سر دِ سلامت وی ښکلی ډير دی | چه سڅوی په جهان لږ ے نهٔ دی خو ے
د ړوهيږم په خبرو ے تير با سے | چه وښلے شی دا صبے مطلو ے
د ا سبق چه تل له يار سره جفا ګړے | راته وو ايه له ګومه مُلا لو ے
لا د عشق خامی لرے عبدالقادره! | چه د يار له جفا زار ګوے ياخو ے

---

ئے پښتو محاوره ده - چه سر حيات وی ټوپئ ډير ے - (هميش خليل)

## ۲۴۰

نن سحر صبا نارے وکړے بلبلے | د بهار زیرے کاوہ یوے په بلے
وے ئے "زیرے مے درباندے خزان تیرشو | بهار راغلے پانړو ونیو لے وُلے
وار دغم د محنت تیرشو خوشحالی کړه | دغمژنو غوندے څهٔ ننو یتلے
اوس رادرومه چه ګلونو باندے ګشت کړو | لوریه لور دګل غوټئ دی غوړیدلے"
دے وے "تادبهار غم لیدلے نهٔ دے | هم بهار په ما لمبے وُلګولے
دخزان دبهار ورځے راته یو شوے | چه مے دوارہ تیرید ونے وُکتړلے
له دے پسه به بهار په ځان حرام کړم | دخزان خوشئ مے زیاتے وُلیدلے
خوشحالی به لکه زهر ورئیکاره کرم | کهٔ دغم پیالے دیو ځله وُڅښلے"

نصحت عبدالقادره څنے وا خلـه
داوینا بلبلو تاوته ویـلے

## (۲۴۱)

خود کرده به مانړے کاله نور و وے | دهٔ پخپله پخپل ځان کړے لمبے بلے
کهٔ مقصود ته رسیدهٔ په عنایت شی | وے نهٔ بویه سستی له سعی ځلے
یو زهٔ نهٔ یم چه فریاد کړم ستاله جوره | ستاله جوره د عالم سینے دی چلے
دعاشق کمال سوختن دے دیرسینهٔ وشول | چه پتنګ دعشق په اور شو جلے بلے
په وصال ئے یانصیب څوک مشرف شی | دوکری پسے وُختلے ستلے
شیخه! نور زما توبه یاری به نهٔ کړم | په دُعا وُ کهٔ یار بیا مومم دا ځلے
دموندو وسواس ئے مهٔ کوه طالبه! | کهٔ دپښے دطلب نهٔ دی دواړه شلے

په دوه کونه به سرخرو عبدالقادر شی
کهٔ ئے وینے شی دیار له لاسه تلے

## (۲۴۲)

چه بېرون کاله خاطره غیرے باسے
هم هغه به ئے په مخ کا سترګے لواسے

چه ئے نهٔ په نورو خوری نهٔ ئے پخان خوری
عاقبت شی د هغو خونے میراسے

د به مړګ د خاکسارانو غونډے راکړے
چه وارث ته مے پیسے ایر شی پاسے

تائبانو بیا توبے کړے، چه دلبرے
تورے زلفے په سپین مخ کړے ماتے ماتے

د هر څیز رجوع وخپل اصل ته کیږی
ځکه دړومی و بدذات لره بدذاتے

مخے نهٔ شی په درګاه د دلبرانو
که ورځی عبدالقادر په ننواتے

## (۲۴۳)

کهٔ په ژبه دِ نوم نهٔ اخلم ییچرے
په تش نوم به دِ هم سود کوم دلبرے

اے له سترګو بېرته، هر زمان زړهٔ ته حاضرے
نهٔ له تا زهٔ لرے یم، نهٔ زما نه لرے

د زاهد د سترګو آب صومره په ځائے دے
څوئے سترګے بانړے نهٔ دی برابرے

قرار و آرام ئے ورک شی تل تر تله
چه په زړهٔ ئے ستا د غم شتئ شی سرے

شونډے ستا لکه نبات هسے خوږے دی
تلخ وئیل ځنی نهٔ ښائی لب شکرے

کهٔ مے سیخ په سترګو ښخ کا خدائے دِ نهٔ کا
چه به سترګے کړم له تانه لرے برے

د ښړو سیورے دِ خاړ په پښو څرخیږی
له حیا چه کوز کوز ګورے نازپرورے

د خطا د ملک نافے واړه خجل شی
بار چه ستا زلفے خورے کا معتبرے

کهٔ دِ چیرے د آشنا په کوځے ګذر شی
د صبا باده! زما سلام پرے ورے

زهٔ به څهٔ ځنے مانړے کړم، یوزهٔ نهٔ یم
په غمزو ئے خلقے کړے دے برے

خټک و تر عبدالقادر د دُنیا پرینښول
ورته بس دی وچے شونډے سترګے ترے

# (۲۴۴)

لا دِ یو مانړے زوړ نهٔ وی، نورے بیا کړے
چه ئے غم لره زما سره آشنا کړے

یو زمان را سره نهٔ ئے بے جفا سه
په هر دَم را سره سل رنګه جفا کړے

نهٔ دِ ویره شی له آه نهٔ شرمیږے
په هر څهٔ چه زهٔ پسخیږم هغه لا کړے

له اغیارو سره ناست ئے په مجلس کښے
چه ما وینے روان شے را ته شا کړے

وایم مهٔ خانده بل چا سره زهٔ سوزم
تهٔ زما له کسته لا زیاته خندا کړے

هم مے خون په تیرهٔ تیغ د تغافل کړے
بیا وئیل کړے له نا خواله چه خون چا کړے؟

په ترخهٔ وئیل مے کله خاطر سنهٔ کړه
کهٔ په بنو خوږو خبرو عار رسما کړے

چه په ژمنه د راتللو دِ روغږن ئے
داد نهٔ راتلو وعده ولے رښتیا کړے

بے تا نهٔ وینم په سترګو لا به کله
په دیدن زما ړندے سترګے بینا کړے

یو ځل راشه زما خوار کره میلمه شه
چه په راغله مے د غم خونه رڼا کړے

چه دمینے دعویٰ کړے عبدالقادره!
بویه دا چه ترک له خپله مُدعا کړے

## (٢۴٥)

زهٔ که په رنګ بدیم کښلیه! عار ولې نما کړې؟
چارې د قسمت دي زهٔ ئې زشت تهٔ ئې زیبا کړې

یو ځلې بیا راشه په ګلونو ګذر وکړه
اې د صبا باده! چې بیا نغښتې غنچه واکړې

ګل دې په هجران کښې صد پاره خپله سینه کړه
سرې دې له فراقه لاله سترګې په ژړا کړې

ولې له شیدا بلبلې مخ جار باسې ګله!
تهٔ په دا خوبئ کښې هم د دهٔ نارو رسوا کړې

لا خوشبوئ ورکا عود چې واچوې و اور ته
زهٔ به وفا زیاته کړم کهٔ تهٔ زیاته جفا کړې

تهٔ د حُسن نمر ئې دا نور کښلي لکه ستوري
ګُل به کالعدم شي، کهٔ ښکاره خپله بقا کړې

تل لباسي وائې، دروغژن عبدالقادر ستهٔ
کشکې بل تر دهٔ کهٔ مخلص یار چرې پیدا کړې

## (٢۴٦)

بیا دې زلفې په قلیلو سره تر کړې
کوم نیک بخت وي چې به غیر ئې معطر کړې

لږ نظر مې په حال کړه ذره مثال یم
په دا شکر چې ئې تهٔ د حسن نمر کړې

باده! ګردې د کوڅې را لره داوړه
چې محلت مې په عنبرو معنبر کړې

شکر خدائې له چې تهٔ سرې کړې د کښلیو
بیا له پسه ئې زما د زړګي سر کړې

بوټي به ستا د محبت څنې روان شي
کهٔ پاره مې د نافې په دود ځګر کړې

په نازکو شونډو بار د پانو مه بنده
خدائې چې شونډې و تا سرې بې پانو ور کړې

صنوبر غونډې برې زړهٔ ته آویزان شول
په ښهٔ قد ئې په مثال د صنوبر کړې

سرهالهٔ لرې سودمند عبدالقادر ستهٔ
کهٔ په تور د محبت ئې چرته ور کړې

## (۲۴۷)

لا به کله باران وکړې چه به سوی بوټي شنه کړې ستا و رحم وته ګوري، په کړیا بو رحم وکړې
په درګاه د رته پراته دي، هم له تانه په غوښته دي ستا و داد وته ئې کا ته دي پخپل داد مې زړۀ نه بنۀ کړې
نامراد که په مراد دي، که بنیادمن دي که نابناد دي واړه تا ته په فریاد دي، دمه و زیرمه ته کړې
مسلمان که کافران دي، عاصیان که مطیعان دي رزق خوړونی ستا د خوان دي، رزق له هیچا دریغ نه کړې
زیږوې چه اوږ له خسه، ورځ پیدا د شپې له نسه ښکاره شهد له مګسه، په قدرت وینې شودۀ کړې
چه په چا نشي په تاشي، چه په تا کیږي په چا شي؟ په حیرت ورته دا ناشي، ربه هسې رنګه کړۀ کړې

زۀ عبدالقادر بدکار یم، معصیت کړم ګنهګار یم
بیا له تانه امیدوار یم، پخپل فضل مې زړۀ بنۀ کړې

## (۲۴۸)

ته چه د واړه سترګې تورې په کجل کړې سیاه چشمې د کشمیر واړه خجل کړې
د څوړا آواز دِ لا عقل زباڼې دے څه حاجت چه به د اریال کښې جلاجل کړې
خاورې شوي ګلرخان مې زړۀ رایا د کا نن نارې د نوبهار په ګلو جل کړې
ګله! کشکې به دا باغ راغلې نه وې زما زړۀ به د فراق په لمبو جل کړې
لکه څوک د لاله زار په سیل درومي وسره اورته به د رحم کۀ ئې بورجل کړې
د هوا لړې دِ پریوتې په سترګو چه په عیسې سمې لار کښې ئې ارجل کړې

هره ورځ عبدالقادره نصیحت کا
که ته غوږ په وعظ کړونیو داجل کړې

## (۲۴۹)

چه یو ځل ئې د غمزې په تیغ زخمي کړې    له احواله ئې بیا ورې بې غمي کړې
ستا په داغله مې د خون خاطر صحت شي    په خالي را تلنه هسې بې رحمي کړې
یوه ورځ به دِ زړهٔ تور کاندي لما نه    چه غماز سره دا هسې محرمي کړې
زما زړهٔ لکه غمې وو د یاقوتو    د ازل نقاش تهٔ نیک په دا غمي کړې
شیخه! د رغلم سرې شونډې سترګې تورې    راته ئو د یار ساقۍ ئې محکمي کړې
په هر دَم دِ منت بارېم د یار غمه    چه له دم سره مې هسې همدمي کړې
تهٔ رشتینې ئې دعا له عبد القادره!
کهٔ په عشق کښې مې اختیاره بدنامي کړې

## (۲۵۰)

دا چه نور بنا اُستهٔ ما ته یاده وې    کَر یو هیښ م بیا ستم بُنیاده وې
بې له دې چه مدعي یم ستا د مینې    نور په کوم ګناه وما ته زیاده وې
څرې نهٔ وي چه ما هم ورسره خلاص کړې    چاوې نن چه خپل بندیان آزاده وې
انتظار ئې د بناډئ اند وه دو تا کا    لا به کله الله وهکین دِلشاده وې
چه آخر ئې بیا هم تهٔ په مزکه تو ئې کړې    باده! ګل د چمن څلهٔ کشاده وې
په خالي فریاد به هیڅوک فرهاد نهٔ شي    تر ځان تیر شهٔ کهٔ خپل ځان فرهاده وې
ستا د اخوئ فلکه اوس نهٔ دې ځائي دې    چه آبله د زمانې پرې مراده وې
چه خبر په حقیقت د علم نهٔ ئې    په لږ علم څکه ځان اُستاده وې
لږ حجاب عبد القادر ته د مخ واخله
کهٔ بُنیاد ئې د هستئ برباده وې

## (۲۵۱)

چه دا هسے رنګ په نغته دخپل نس شوے ‖ څکه بند د غافلئ ئے په قفس شوے
شهبازان په دغه بند کښیوتے نهٔ شي ‖ تهٔ د غنړي په جال بند لکه مګس شوے
چه هوا دِ غورځوي هورے تهٔ درو ے ‖ بے وقاره په څوسپک تر خاروخس شوے
که په اور د محبت دِ خپسر وُسوے ‖ له غه پسه به ژوند ے لکه ققنس شوے
چه دِ وپُوښتي څوک هاله څهٔ وُوايه ‖ بے هنګامَ وَيانه څهٔ لکه جرس شوے
کهٔ پيشي غواړے ځان کم ګڼړه تر بله ‖ هم به هاله پيشي بيا موےکهٔ پس شوے

چه اسره دِ ووکسان هاله دِ غم وو
هوس کړه عبدالقادره چه بيکس شوے

## (۲۵۲)

ربه ! ستا قدرت کمال دےکه کرم کړے ‖ وران کاړونه ے به سان په يوه دَم کړے
څهٔ يم زهٔ، څهٔ ے مقصود، څهٔ زما کار دے ‖ په زمان پوره کارونه د عالم کړے
لکه نمر په سرےبَ دے لکه خس اَخلے ‖ سپک درانهٔ کاړونه واړه سره سم کړے
د همه چارو اسباب درسته موجود دي ‖ شاه ګدا ئے، ګدائے بادشاه دلوئے حشم کړے
په قدرت هسے نوريوسے له آفتابه ‖ ستوري وُبرېښي عرمه جهان تورتم کړے
دير بنادمند په عشرت درسته شپه کاروڼه ‖ په صبا ئے د عشرت په ځائے ماتم کړے

شپه له ورځے پيدا کيږي واځ له شپے نه
ومُرده ته ورکړے دم ژوند ے بے دم کړے

## (۲۵۳)

حال مې تا وته معلوم دی ته مې وینې
چه ژوندون مې دی د خپل مئین په مینې

عشق مې ځائې په رګ او پلو کښې زما ونیو — ترې به ووځي حاله چه ووځي وینې
دا زهوب زما د زړۀ له داغه درومي — له مې سرې وښکې له سترګو ځي که پیینې
چه د نه زړۀ ئې خوږ شي زړۀ مې خوږ شي — چه خبر به شي زما له سینې خوږینې
چه صفت د کوثر کاندي زنځوران دي — ستا د خلې لا ړې ترې خۀ دي شیرینې
ملوکان ئې هیڅ له قدره خبر نۀ شول — تر ململ دي غبارې جامې مهینې
په کوږ کوږ کاتۀ ئې شیخه غلط مۀ شه — سل فتنې لري لا سترګې شرمګینې

دنګاه په تیغ دِ غځ عبد القادر کړ
پرې ملهم د شونډو وکیږ ده دِل سنګینې

## (۲۵۴)

چه په واړه کښلیو بر دې — هم هغه زما دِلبر دې
برخوردار به ځنې ډیر شي — سرتر پایه واړه بر دې
مخ ئې نمر شونډې ئې لعل — قد ئې سروه سمنبر دې
چه قانع په خشک و تر شي — هغه شاه د بحر و بر دې
چه په بدو باندې بنۀ کا — هغه وګړه چه بر دې

★

## (۲۵۵)

اشتیاق د لیدو دېر دے
د بیان تر حده تېر دے

داگمان کړه له زړه لرے چه مے یار له دله هېر دے
زړه مے غوښ کا صورت روغ دے د هجران عجب شمشېر دے
که ژوندون تر هر څه خوږ دے بے تا زهر یا کنډېر دے
هوس نه پرېږدی چه ورشی د غم کوټ تر زړه چاپېر دے
کشمیر هم په مهجورانو رنتمبور او ګوالیر دے
د زړه سوے دے چه بے یاره که په سوات که په بونیر دے
سترګے سرے عبدالقادر کا
د هجران په غم کښے ګیر دے

## (۲۵۶)

خزانه دِ ده د کور د ننه پشئے
ځکه مار غوندے تاوېږے څړه وش ئے

همنشین دِ نفع نه سومی بے زیانه په بدفعل بدخصلت دکان ویش ئے
په تنش کښی لکه هوسے راځی تر پلے له یارئ مے دِ توبه شه چه دکش ئے

★

# (۲۵۷)

د خاطر له اندوه څخه اسنده ده
په سیلئ جنبش د کاه شي نه دکوه ده

لاس خالي د ننه زړه ئے ډک د مینے — بے پیوند ه آزاده عجب ګروه ده
د فقیر له غمه څه چه غمګین وسي — په خاطر د دُنیادار و غم انبوه ده
چه خبر ئے شي له مکره ځني تښتي — د دُنیا یاري یاري مه ګڼه دروه ده
مال و ملک حشمت ئے هیڅ ښکار نه دي — هر بادشاه له دُنیا ولاړ په آه او ده
مُراد بخش[1] مُراد بیا نه مُوند نامراد شو — سینه داغ ځني جدا دار[2] اشکوه ده

نور مي د شاه جهان، جهان پرے نه خوه
اورنګزیب په څه خوشي کاندي که پوه ده

---

[1] د شاه جهان بادشاه دکشر زوئے نوم ؤ چه اورنګزیب قتل کړے وو۔

[2] د شاه جهان بادشاه مشر زوئے چه د اورنګزیب او مراد بخش سره ئے د سموګړه په مقام مقابله شوے وه۔ شکست ئے وخوړو او په کال سنه ۱۰۶۹ھ کښے قتل کړے شو۔

## (۲۵۸)

په ورځ لاف وهے د سولو ځان پتنګ کړے
په ماښام چه چراغ بل شي ځان په څنګ کړے

په راحت کښې تل زما په غېږ کښې پروت وے
په نکبت کښې اوس زما له يارئ ننګ کړے

د يارئ اول قدم موافقت دے
د مننګ ياره ځان بويه چه مننګ کړے

د نظر صيقل بنهٔ مخ وته کښل دي
له نظره مے به کله لرے زنګ کړے

آشنا ستا له بے رحمئ ئے مے زړهٔ چوي
زهٔ حاضر، له بېګانه وُ سره جنګ دے

خفتګان به د قالين په رقص کړه شي
کهٔ تر غوږ وے د پايلو نرے شرنګ دے

ستا په لاس د غمزے توره، زهٔ تسليم يم
بيا په کوم ګناه زما له وژلو ننګ کړے

نور به يار پسے جام په خاوړو رنګ کا
ما په تا پسے په خپلو وينو رنګ کړے

هاله لاف د عشق کوه عبد القادره
کهٔ په يار پسے جوړ کور د دُنيا ړنګ کړے

## (۲۵۹)

داخهٔ نوی دے بناسته وُ عادت ستاسے
چه همیش وی له عاشقه شدت ستاسے

سرومال بښندل زینت دعاشقانو
عنایت، مهر، نمځنه زینت ستاسے

نتیجه ئے نورخهٔ هیڅ نهٔ وی بے سوزه
په معنیٰ کښے لکه اور دے قربت ستاسے

چه پتنګ غونډے ځان وسیزی ایرے شی
هم مغو ته مُیسر شی وصلت ستاسے

دحرفو نو لوښے تنګ معنی ئے ډیرے
په بیان نهٔ ادا کیږی صفت ستاسے

ګُل څهٔ، خار وخس به هم واړه خوشبو شی
کهٔ نسیم په چمن راوُړی نکهت ستاسے

چه شاعر ئے له څهٔ څیز سره تشبیه کا
هومره نهٔ وی نزاکت لطافت ستاسے

ترحم ئے په احوال څهٔ خوباشده دی
چه ولاړ وی شپه اوورځ په خدمت ستاسے

کله توان عبدالقادر لری دشعر
ډیوی ے هومره ډیر محبت ستاسے

## (۲۶۰)

دلبر مخ راته ښائی په هر آئین کښے
که په تور کښے جلوه گر شی که په سپین کښے

گهه په سترگو کښے ځائے وکړه زړهٔ راکاږی
گهه په سترگو په رخسار او په جبین کښے

کله کله په ترسا کښے مخ ځرگند کا
د صنعان په دود ئے وران کاندی په دین کښے

په چراغ کښے تجلا وُکا پتنگ ته
بلبلانو ته ښکاره شی په نسرین کښے

نور او نار ئے د جمال جلال اثر دے
قهر مهر ئے په تلخ او په شیرین کښے

که اثر ئے د لبانو په کښے نهٔ وے
نهٔ به وو دومره خوند هٔ په انگبین کښے

یوه خدایا! عشق یو ځرنگه لوئے شے دے
چه ئے ځائے نشی په چرخ او په زمین کښے

گنج همیش په ویرانه کښے ښخاوهٔ شی
امانت ئے ځکه کښیښو په کمین کښے

په هر څهٔ کښے گوره یار عبدالقادره!
که د نشته شک گمان په خپل یقین کښے

## (۲۶۱)

درحمت درياب هغو ته په جوش دې
چه دائم ژړا زګيرۍ وې کا په خروش دې

لَا تَخَفْ وَلَا تَحْزَن [1] د هغو بخره — چه له ډېره غمه نيش پرې باندې نوش دې
له پېشوې ويره شي له مزري نه شي — چه بې خدايه ويره کا په معنیٰ موش دې
د دنيا په سرائې کښې څه وآخرت ته — کاروانونه ملي لېږدي پوشاپوش دې
چه به پروت وو لب په لب له لب شکره — نن په څو له تورو خاورو هم آغوش دې
په بهائې د واړه کونه ورکول شي — که پياله ئې څوک اخلي مې فروش دې
بيا به نه مومي زنځير د يار د زلفو — چه په سر کښې ئې لا پاتو عقل و هوش دې
د سکوت هنر له ګل واخله بلبله! — چه په سل ژبې آواز نه کا خاموش دې

اوس ښکاره عبدالقادره مې نوشي کا
چه صاحب د ګناه بخش و خطا پوش دې

---

[1] لَا تَخَفْ وَلَا تَحْزَنْ إِنَّ اللّٰهَ مَعَنَا -
يعنی مه وېرېږه او غم مه کوه - يقيناً الله تعالیٰ زمونږ د واړو سره دې - د غارِ حرا هغه واقعې ته اشاره ده - کوم وخت چه غليم په سر ور رسيدلې وو -

## (۲۶۲)

کهٔ ښکاره شي درویشانو عـزت ستاسے
ګدایان به شي شاهان په دولت ستاسے

دَدُنیا نوبت، نوبت په نوبت دړومي — همیشه وي بے زواله نوبت ستاسے
څهٔ شوئ که موخوک نهٔ پرېږدي ورته — خبردار دي ډېر په قدر و قیمت ستاسے
صبا ورځ چه اجتماع دخلائق وي — په هر چا به شي ظاهر منزلت ستاسے
هم هغه به د نجات په لوړ روان کا — چه پرے شي مهرباني عنایت ستاسے
غم اندوه شهٔ په نصیب ددُنیا دارو — فراغت د زړهٔ خوشي په قسمت ستاسے
ستاسے هومره ډېر حُرمت پخپل صاحب دے — چه به نور شي په عزت په حرمت ستاسے
په نصیب به د هغو شي چه نیک بخت وي — د دوو کونو سعادت دے خدمت ستاسے
د راحت امید کوئ اهـلِ محنتـو! — خدائے به نهٔ کاندي ضائع مشقت ستاسے

مددګار د ګنهګار عبـدالـقادر شئ
ګوندے بیا مومي خلاصے په همت ستاسے

## (۲۶۳)

مرغلرې ولیدې شوې په پېژوان کښې
که غوټۍ وې د شبنم په ارغوان کښې

دختا د ملک کبکي ئې دواړې سترګې
چه تل ګرځي په سُنبل او په ریحان کښې

ستا د ورو ځیو تشبیه نه موسم په دوړ
لړو ډېرې دې موندلې په آسمان کښې

څه نسبت دیاړ دغاښو په ګوهرو
دا په نس کښې د صدف غاښي په دهان کښې

چه له شونډو ئې نسبت کړه سخندانو
شرمنده شه، لعل نتوت په کان کښې

د لذّت بیان ئې څوک کولې نه شي
دجنت دخوږو خوند ستا په لبان کښې

ستا رخسار وته حیران دخدائې وکړه ته
چه وینته ساقي له اوړه په امان کښې

تماشې مې دجهان دکېنلیو وُکړې
نشته تا غوندې یو ګل په ګلستان کښې

په دا شکر چه وندې زلفې ئې ددکړې
پرې وکاږه ډوب په چاه زنخندان کښې

حاضران د حیرت ګټه په خله لال دي
غائبان دِ تمثیل راوړي په بیان کښې

سترګې غوږ عبدالقادره! دواړه بند کړه
دا هغه به دواړه وُوینې په ځان کښې

(۲۶۴)

چه وصلې دې هرګز را خبر نهٔ شوې
ستا له غمه درسته شپه ژړا چغارې

راشه ګوره ننداره کړه ژړنګ لګ دې
ستا د غم غشې دِ ما په زړهٔ نګارې

چه وکاږې دې هرګز سپیدې نهٔ شم
د غمزې توره په میان کښې کړه خونخوارې

تا چه راکړه، زهٔ پرې بې حسابه مست شوم
سپینه خلهٔ په دواړو شونډو شکر بارې

په منځ منځ به دې وهم پرې به دې نن دم
زهٔ به ستا په غلیم وکړم هسې چارې

چه دې واز کړې هر ګوره بنا لسته شي
په خندا کښې سپینه خلهٔ پرې رخسارې

کلک دې ونیسه په لاس کښې چه خلاص نه شي
زما زړهٔ، که د دلدارۍ کوې نګارې

## (۲۶۵)

پښې برښنډې، سر برښنډ، ګریوان پاره وې
په طلب ئې په ملکونو آواره وې

په سته شوې د دُنیا له کاروباره — تا ګڼړې نا شمارې، هیڅ کاره وې
له دې عقله هیڅ فائده حاصله نهٔ شوه — لا یعقل د لیونو په شماره وې
د آشنا د غم په سینه کښې آشنا کړې — د جهان له هوښونو کناره وې
د عالم په نیک و بد غرضي نهٔ وې — بې جوابه، بې حجته، بې چاره وې

په هر ځائې چه کښېنې وې عبدالقادره!
په حیرت ئې د جمال په ننداره وې

## (۲۶۶)

تا یاری لمانه پریکړه، کهٔ پښیمان ئې
بیا رادړومه، هغه زړهٔ، هغه ځان ئې

همیشه زما د باغ زرغون طوطا وې — اوس خبر نهٔ یم، طوطا د کوم بوستان ئې
کهٔ طامع په سر پر پاس کښېني ګدائې دې — کهٔ آرزو وته د شاکره نورسلطان ئې
غم اَلم به درته نهٔ رسي اې یاره! — کهٔ د خپلې ژبې هر کله پاسبان ئې

* * *

# قصیده (۱)

کهٔ په تن دِ هر وینبتهٔ ژبے هزار کا — بیا د ژبے ئے هزار هزار گفتار کا
کهٔ سیندونه دجهان واړه سیاهي شي — قلمونه دجهان واړه اشجار کا
فرښتے، سړي، پیریان وبله تمول شي — په بیان په کښو هزار ځله تکرار کا
دخپل خدائے د نعمتونو په حساب شي — گمان مهٔ کړه چرته یو نعمت په شمار کا
د نور چا څهٔ زور قوت چه اوالعزم — په خپل عجز کښے له دے بابه اقرار کا
هغه خدائے چه برکمال دے په قدرت کښے — چه په خوا په خاطر نهٔ وی هسے چار کا
په اوبو باندے یوه کرښه محال ده — چه ئے وُکا، ځان کهٔ هر څو اُستکار کا
حکیمان که واړه جمع د عالم شي — په هوا به یو ورق کله قرار کا
دهٔ اِساس د درست عالم په اوبو کښیښي — د نور چا کله قدرت چه هسے کار کا
هم ئے بے ستنو آسمان دے وُدروُلے — حیرانیږی چه نظر ورته هوښیار کا
گران آسان ددهٔ قدرت وته یکسان دی — نهٔ خلقت د چا آسان د چا دشوار کا
ورته یو خلقت د ماشي د آسمان دے — کاه او کوه په یوه آن کښے پیدا کا
باد او خاوره اور او به کهٔ هر څو ضد دی — په یوه مکان کښے جمع هر څهار کا
کهٔ پخپله اور غالب وو په لرګیو — تروئے وے په لرګیو کښے ایسار کا
کهٔ شلور دی که پنځه کهٔ شپږ اُووهٔ دی — همگی په حکم کار د کردگار کا

حرکات د هیڅ اشیا نهٔ شي بې حکمه ‌‌ ‌‌ سکنات کله په خپل حکم اختیار کا
جهان پُر کاندي په ورځ د نمر له نوره ‌‌ ‌‌ بیا په شپه دده نابود واړه انوار کا
بناُسته کاندي آسمان په شپه په ستوریو ‌‌ ‌‌ په ورځ مزکه بناُسته په لاله زار کا
دخزان په وخت زیست له مزکې یوسي ‌‌ ‌‌ بناُسته ئې بیا په وخت د نو بهار کا
د اوبو تفاوت هیڅ د باله نهٔ وي ‌‌ ‌‌ ترې پیدا رنګا رنګ کل الوان اثمار کا
نهٔ د ګلو رنګ و بُوئ په یوه شان وي ‌‌ ‌‌ نهٔ لذت د سیبو وُنه د انار کا
له یوه باغه میوې له یوې مزکې ‌‌ ‌‌ تفاوت ئې د لذت ترمنځ بسیار کا
په همه کاڼو تابش د نمر یکسان دې ‌‌ ‌‌ څُنې کاڼي، څُنې لعل یاقوت آبدار کا
له یوهٔ ځاځکي پیدا کا مرغیچې ‌‌ ‌‌ له یوهٔ ځاځکیه پیدا دُرّ شهوار کا
له یوه اصله نطفه پیدا انسان شي ‌‌ ‌‌ څُنې څُنې مسلمان څُنې کفّار کا
ځوک بد رنګ چه له لیدو ئې نفرت مُومي ‌‌ ‌‌ څُنې څُنې بناُسته بنکلي نګار کا
ځوک توانګر د قناعت په خزانو کا ‌‌ ‌‌ ځوک د طمع د حرص په خوارئ خوار کا
ځوک توفیق د طاعت بیا مومي له ده نه ‌‌ ‌‌ شپه او ورځ ئې خپل طاعت وته بیدار کا
چه توفیق د عبادت ورځني واخلي ‌‌ ‌‌ مخ ئې تل په میخوارئ لا په قمار کا
له ازله چه طالع د چا ترخې وي ‌‌ ‌‌ له حلالو ورته لا خوارهٔ مُردار کا
خزانې ئې لا یعد او لا یحصٰی دي ‌‌ ‌‌ و لې ورکړه وهر چا بخپل مقدار کا
نیک و بد له ده هر چا وته رسیږي ‌‌ ‌‌ خوار هغه شهٔ چه په دا باندې انکار کا
په طلب ئې ځوک په دَو ځوک په تلوار ځي ‌‌ ‌‌ ځوک په ځوک په سینه پسې رفتار کا
د میږي د پښو آواز آوري بې غوږه ‌‌ ‌‌ چه په توره شپه په توره کاڼي ګذار کا
نږدې لرې ئې لیدو ته برابر دي ‌‌ ‌‌ د نظر حجاب ئې غر نهٔ ئې دیوار کا
د نفس ځنبتن همه واړه هو هو کا ‌‌ ‌‌ نهٔ یواځې ذاکران دده اذکار کا

تسبیحات ئې نهٔ یواځې فرښتې وائي　　تقدیسات همه اشیاء دخپل دادار کا

دا دنیا عمارتونه چه لیدل شي　　د دوران په زلزلو به ئې مسمار کا

همیشه به ئې چیچي پرې به هراند وي　　په بخیل به د بخیل خزانه مار کا

چه د ظلم اور ئې بل کړ په عالم کښې　　ظالمان به ځان سوخته په د غه نار کا

په خپل ځان باندې ستم کا نهٔ پوهیږي　　چه ستم په زبردستانو ستمګار کا

ملاقات به یو په سله ځني واخلي　　چه بې شرعې لږ دچا خاطر آزار کا

عاقبت به وږې تږې ځني درومي　　که هر څو لئیم په کور کښې زر انبار کا

چه بې ځایه ظلم کا په مظلومانو　　ځان ظالم په طوق د لعن ګرفتار کا

حسنات به ځني واړه خصمان بیوسي　　پرې انبار به د خصمانو بدکردار کا

دا دنیا لکه مزرع د آخرت ده　　په کښې کرځنې د ګلو، څوک د خار کا

داخستو ورځ ئې ورځ د قیامت ده　　هم هغه به وریبي چه کښت و کار کا

د جهان ورکول ګل په عاریت دي　　تعلق به دانا څهٔ په ستعار کا

چه ئې پس له دهٔ نور تاپیر تار ولجه وړي　　مرد هغه چه خپل لاس ئې تاپېر تار کا

چه پرې تلهٔ ترپلي لا د سپارهٔ سخت دي　　براق په پلي و سې شهسوار کا

چه په خدائې باندې غني، غني هغه دې　　دسبب په غنا څهٔ څوک اعتبار کا

لایزال دې سلطنت د ګدایانو　　د زوال ویره ئې نشته، نهٔ ئې دار کا

دا دفقر لوئي څو ده نهٔ پوهیږم　　چه بهتر د موجودات پرې افتخار کا

ستا په در کښې که اروت په توړو خاوړو　　که د درست جهان بادشاه شي ځني عار کا

چه ئې ذره په معدوم تینګ دې تر موجود ده　　ما د خدائې تر هسې رنګ څوانانو ځار کا

ورکول په طمع ورکړه د رشوت ده          ابلهان به ورته وائي چه ایثار کا

که ګنج[1] غواړې رنځ څکوه عبدالقادره!

مزدوري به هم هغه موې چه کار کا

---

1 نابرده رنج ګنج میسر نمی شود
مزد آن ګرفت جان برادر که کار کرد
(شیخ سعدی)

# قصیده (۲)

شگفته په باغ وراغ شول د بهار گل — هم په بام هم په کوټه هم په دیوار گل
نه یواځې گل د گلو بوټي ونیو — بادام گل شفتالو گل ونیو انار گل
هر اشیا د مزکې گل پروردګار کړه — جمادات گل، نباتات گل، گل اشجار گل
کانړي بوټي خاروخس په گلو پټ شول — د همه وارو عیبونو شو ستار گل
تو دسترګو نظر لګی واړه گل دی — وړاندې گل وروستو گل، یمین یسار گل
هیڅ یو ځای خالی له گلو پاتو نه شو — په بازار گل، په صحرا گل، په کهسار گل
که آسمان په شپه په ستورو بناسته وی — لا تر مزکه بناسته کړه په بهار گل
عندلیب ناره وهی چه سیل ئې کا سړی — بهار درومی دیړ یدون کا په وار وار گل
لا تر گوره کو دد یو پروت په گور کې ښه دے — چه په نه کوری سر کال د دے گلزار گل
د بهار په سیل ځوانه زلمی کښینی دی — په وربل گل، په پټکی گل، په دستار گل
د دلبر صورت تمام لکه گل روغ دے — پښې ئې گل، لاسونه گل، ځوره رخسار گل
مے گلگون، ساغر گلگون، شیشه گلگونه — ساقی گل، حریفان واړه گل نګار گل
د بهار په سیل وځوځه له کوره — د راتلو د مرګوره دے کا انتظار گل
چه گلونه بوئیږی احتیاط بویه — چه په شونډو دِ ونه کاندی پرهار گل
چه دګلو هار په غاړه ستا زنین کا — په سینه باندې ئې ځرخی لکه خار گل
خاص وعام ئې بهره مند په ننداره شول — ننتونه په هرچا باندې کړه بار گل

چه د یار له وصله بناد وی ګل به ګوری
د مهجور به هرګز هیڅ نهٔ وی پکار ګل

چه بې یاره د بهار په سیل درومم
په خاطر باندې مې لګی لکه نار ګل

په هزار رنګه ګلونه شګفته شول
وُلید نهٔ شو یو پېشان زما د یار ګل

چه دا هسې ئې په ډکه خلهٔ خندا کړه
مګر نهٔ وو له خزانه خبردار ګل

په نَموس په خوشحالئ ئې اموخته وے
ګل پروره مهٔ کړه زړه د زړه خوار ګل

بلبل هیڅ نهٔ وو خبر د عشق له تاوه
په فریاد کړه، په ناروکړه، په چیغار ګل

چه دسرائې په مزکه وا دسپرلی ګل شی
شرمنده کا د کشمیر د بل دیار ګل

دا رنګ ګل چه په سن کال د غواص (١٠٩٤) وا شول
د چا یار نشته پخوا هسې بسیار ګل

چه نشان د چِل آشنا ورځنی مومی
ځکه یاد عبدالقادر کړه په تکرار ګل

په بیاض کښې دې د شعر ډول ډول
شګفته دی تر وا بنهٔ هزار هزار ګل

* * *

# (۳)
# قصیده

چه دے نهٔ شوے په شرعه مستقیم
د صراط په لار دِ ویسم هورے بیم

کهٔ په اور د ریاضت خپسر وُ سوزے
لا له زار به درته اورشی د جحیم

د گناه توری دسترگو په اوبو ځی
له ژړا دِ قراری نهٔ کا اثیم

چه هیڅ زیرمه د عقبا د سفر نهٔ کړی
د دنیا په سرائے کښے ځان گڼړی مقیم

عاقبت به د ارمان ورغوے ژوی
د مغو چه شیطان یارشو، نَس سندیم

د غلیم په وښل وے کړے کارونه
کهٔ ته نهٔ ئے د خپل ځان سره غلیم

د دانا صحبت صحت د رنځور زړهٔ دے
د نادان صحبت عذاب گڼړه الیم

چه راضی په خپل قسمت نهٔ ئے حرص کړے
سکه پیدا کا بے قدیمه بل قسیم

مگر سترگے ئے دگور خاورے مړے کا
مور به نهٔ شی حرصناک په زر وسیم

غابنه مات شوی په خوړل د کانړیو سبهٔ دی
نهٔ یوه نمړئ خوړلے د لئیم

د الله الف عصا دهٔ پړے تکیه کا
په ملا خم مهٔ شه مخلوق ته لکه جیم

کهٔ په خلهٔ کلمه لولی نونځ دوڅړه کا
دروغژن دے منافق سره سهیم

د دنیا کارونه وهم خواب وخیال دی
تعلق به پورے څهٔ کا ندی فهیم

چه بے حقه نور باطل ورته ښکاریږی
هم هغه سړے دانا بوله حکیم

چه موجود ئے موجودات کړهٔ له عدمه
څهٔ مشکل کهٔ ژوندی وی عظام رمیم

خوشحال کړے ئے هر څوک په خپل خپل کار دے
په هر چا باندے ئے لطف دے عمیم

نا امید ئے له درگاهه هیڅوک نهٔ ځی
تفاوت د نیک او بد نهٔ کا کریم

چه په چا ورسره بد کړهٔ دهٔ به سینهٔ کړه — مصطفیٰ ته ورکړ خدائے خلقِ عظیم

چه په خوئ د خدائے په خوئ و وصفت شوے — ځکه سے رنګ زمونږ نے وو حلیم

د نمرود آتش ئے ځکه باندے باغ کړ — چه خلیلؑ شو وقفا وَته تسلیم

په صفت د کمینئ آدم صفی شو — په صفت د تکبر شیطان رجیم

د ارشاد صابون اثر ورباندے نهٔ کا — سیه دِل دی ازلی سیه گلیم

په آزارئے آسمانونه په لړزه شی — هر ظالم چه په ژړا کاندی یتیم

چه دائم د مظلومانو وینے شومی — ظالمان به پیالے وڅښی د حمیم

چه په حال د مسکینانو ترحم کا — په عفو باندے به رحم کا رحیم

چه لاړ نهٔ شے په غفلت عبدالقادره!

کهٔ پوهیږے غنیمت دے دال و میم

★ ★ ★

# (۴۱)
# قصیده

حاکمان او عالمان د دے زمین ‌ ‌ ‌ ‌ چه لیدل شی په دوران د محی الدین
هیڅ حاجت د عیان نشته وبیان ته ‌ ‌ ‌ ‌ خود ئے حال دے وړ چا وته مبین
همګی واړه مذموم په خوئی خصلت دی ‌ ‌ ‌ ‌ یکښے یو نشته باد شاه ته د تحسین
زهٔ به هم یو څو خبرے له دوئی وایم ‌ ‌ ‌ ‌ چه ئن عقل زما زړهٔ ته کړی تلقین
علماءُ فضلاوُ نه ئے نفرت دے ‌ ‌ ‌ ‌ په مجلس کښے ئے ارذال کښیني کمین
وبله واړ نهٔ ورکوی په پوچ وئیلو ‌ ‌ ‌ ‌ غوږ کا نړهٔ کا چه مذکور کیږی د دین
د راجپوت د رافضی په استقبال ځیٔ ‌ ‌ ‌ ‌ عالمانو ته هسک نهٔ کاندی سرین
د مسجد په لوری شل شی نهٔ ورد روی ‌ ‌ ‌ ‌ تل ئے اُس په پوچ چارو پیے زین
کله کله چه سر ووهی په مزکه ‌ ‌ ‌ ‌ سل منته بړ دی په رب العالمین
څو د خلقو آزار ډیر کا د دهٔ خیل وی ‌ ‌ ‌ ‌ په نیک خواه د عالم تل وائی نفرین
د رشتیا خبره زهر، ځنے مر ینه ‌ ‌ ‌ ‌ څوش آمد د روغ تر شهدو بره شیرین
هم هغه چه خوشامد کا مصاحب وی ‌ ‌ ‌ ‌ لا تر ے وی په بد وئیلو ځنے خوږین
په میدان ئے شغالان په بریتو میتړی ‌ ‌ ‌ ‌ د قالین مزری مزری وی د قالین
تل ئے هجو د سخی د مړنی وی ‌ ‌ ‌ ‌ د ممسک د بیدلانو کا تحسین
همیشه د ځان صفت د بل غند نه ‌ ‌ ‌ ‌ خود پسند وی، خود نمائے وی، خویشتن بین
د محنت په ساعت ځی تحت الثریٰ ته ‌ ‌ ‌ ‌ د راحت په وخت قدم بړ دی په پروین
کهٔ دولت ئے لکه بحر بے پایا نشی ‌ ‌ ‌ ‌ بیا سائل وته چین راوړی په جبین

چه فقیر ئے په در ورشي ورکړه پرېنږده | په شیرین ویېل ئے نهٔ کا زړهٔ شیرین
یو دِرم ئے په ځائے نهٔ درې لهٔ کوره | تَل بخښایه ورکول دده آئین
خرڅ ئے واړه په لباس او په زیور وی | لکه ښځے آرائښتی کاندی تزئین
دیوے روپئ ځائے چه لس اخلی | هم هغه په رعایا کاندی آمین
دد هقان په خوارول ئے ستر کے سرشی | په پټی چه زراعت وويني شین
پیشکارانو ئے په آبرو اشارت وُکا | چه څوک وويني اغوستي نمری پسین
رعیّت چه داد خواهئے لره ورځینه | کهین واغوندی کور بدی نمری مهین
ځان او مال ئے له کفارو په امان وی | دیو بدبختو تاخت تاراج کړهٔ مؤمنین
د مجرم جُرم لا نهٔ وی ثابت شوے | براتیان ئے په کور باندے تعین
رعیت د دوئ دښمن وی دوئ د دیو | دوی ودهٔ وته، دے دوئ ته کا کمین
هر ظالم چه تعدی په رعیت کا | په قیامت به ئے مقام کاندی سجین

که باور دِ په دا نهٔ شي ورشه گوره
په قرآن کښے بشئ مثوی الظّالمینَ

---

ئے ظالمانو زیاره د استوگنے بدترین ځائے

# قصیده (۵)

## (مرثیه د خوشحال خان خټک او ورارهٔ معظم)

---

یاره ستا د هجر غم راته دریاب شو
تر نظره د دُنیا هوس سراب شو

ستا په تلو د خوښئ نے بساط وُنغښت
مُهیّا راته د غم واړه اسباب شو

کهٔ نخوا مے ډیر غمونه وو لیدلی
لا مے ستا په جدائی کښے زړهٔ کباب شو

په معنیٰ کښے خټک تیغ وو، تهٔ ئے آب وے
غوټوُل به اوس په څهٔ کا چه بے آب شو

خدائے له مونږه لا په تا باندے مئین وو
چه رحلت دِ له دُنیا په دا شتاب شو

د مخ آب ئے هرکوره ډیر وو بے حسابه
مستسقی به ئے په تنې دیدن سیراب شو

زر ریزی ئے لکه گُل په واجبین وه
نهٔ تر یو په وخت د داد لکه سحاب شو

دوست دښمن ئے له جماله بهره وړ وو
د هر چا د زړهٔ ارمان د دهٔ شباب شو

دُر گوهر به ئے له لعلو ریژوین کړ
چه گویا به په کلام با صواب شو

سپک ویئل ئے هرگز نهٔ وتل له خُلے نه
چه به چا وته په قهرو په عتاب شو

د ارمان د دانو ډک لکه انار لاړ
د ژوندون له باغه کله مزه یاب شو

له اندوه د دنیا ورځ لکه تیارهٔ شوه
چه غروب د دهٔ د کښلی مخ آفتاب شو

چه ئے خوب په پالنګ نهٔ کیدو بے گلو
په بستر د خاوړو څرنګه په خواب شو

په هغو رخسارو پریوتلے خاوړے
شماتت ئے چه په گلو د گلاب شو

چه دا مسے رنګ ځوانان پکښے پراته دی
په آسمان باندے ډیر فخر د تراب شو

د رستم د اسفندیار د جواب ځوان وو
د قضا حکم پرے راغے لا جواب شو

عطارد ئې په آسمان مرثیه وائی — د زهرا له لاسه مات چنګ ورباب شو
په بهانه د بارانهٔ چه دهٔ وفات کړهٔ — فلک هم د نوحه ګرو په حساب شو
غواصی کوم د وښکو په دریاب کینې — نهٔ ئې مومم معظم دُرِّ نایاب شو
په ژړا په واویلا له مونږه بیل شو — هجران هیڅ زړهٔ سوزی نهٔ وُکړهٔ قصاب شو
کهٔ د ځیلو په ژړا جنت موندهٔ شی — سکه بیشکه وایه دهٔ د جنت باب شو
درویشت کاله د دهٔ عمر زړاته نوی (۱۰۹۸ھ) — دَ هجرت حساب په حکم د کتاب شو

چه د ښهر ودانئ وحُسنی وُوست
سرائے ته څهٔ عبدالقادر ډېروی خراب شو

---

۱ د شاعر ورارهٔ ۔ د ۲ خلف بهرام زوئے ۔
بنهٔ تاریخ ئې راغے "بے بدل معظم" (۱۰۹۸) (خوشحال خان خټک)

(۶)

# قصیده

## مرثیه د خوشحال خان ختک

---

همیشه مې ستا له غمه مشغولا ده          ستا له پسته راته پاتې بنا دي دا ده

خپل پردي راځني واړه کناره شول          چه تل مله ده، را سره اندېښنه ستا ده

په بهانه د آه خپل دم راځني ډېر وي          له همه موبې هوده ګیله زما ده

وښکې هم د وچېدو له وېرې لاړې          له تو دې تېغنې مې ګرمه سینه لا ده

نا آشنا همیشه خوښ ګرځي هوس کا          په جهان کښې د غم بخره د آشنا ده

د غم تخم آشنائي ده که ئې ګورې          معتبره هر چا ته دا وینا ده

د هجران غشې په هره سینه لګ دې          چه هر لوري ته غوږ باسم زګیروا ده

ثوک چه وائي تر بلا، بلا وي سخته          کله سخته تر بېلتون بله بلا ده

جدائي په نابودي سړې راضي کا          له ژوندونه په مرګ مینه د جدا ده

دا چه وائي بد ژوندون تر مرګ بدتر دې          اوس پرې وپوهېږم دا وینا رښتیا ده

مرثیه به دِ په هسې مضمون وایم          چه هیڅوک پرې نه پوهېږي چه د چا ده

د تا درد مې په بېدردو پېرزو نه شي          ستا د درد د درست جهان خوښي بها ده

د فراق په اور دِ وسوم نو مې وچ شو          اوس مې تل په وچو سترګو ستا ژړا ده

چه هر څېن دِ یادوم په زړه ورتېږم          لا چه ډېرې ژړوي دِ تا خندا ده

زه چه ستا په تلنې ژغ سره تېر نه شوم          که خوارېږم پس له تا دا مې سزا ده

په ارمان د ملاقات له موږه لاړې          زموږ ستا د لیدو ژمنه په عقبا ده

خپل پردي درباندې هیڅوک حاضر نه شول          نه دِ پاتو مال او ملک نه دِ دنیا ده

چه پیسه دِ پاتے نهٔ شوه و کفن ته
هم دا نخښه ستا دجُود او د سخا ده

له اهلوکهٔ دِ خپل وو کهٔ پردی وو
حُنی تالیدے څو رنګه جفا ده

خپل شامت به ئے دے څورے خراب کا
چه بدی کا د هغو بدی جزا ده

په وطن کښے مسافر غوندے وفات شو
خپلخانه ورځنی واړه پیس شا ده

خپل دِ نهٔ وو چه دِ حال ورته بیان کړے
له فانی دُنیا دِ وُړے ډکه خوا ده

دُنیا خلق څو واړو درته شا کړه
ستا تکیه په خپل څښتن په خپل پښوا ده

یے له صبره له تسلیمه چاره نشته
مونږ ورؤړے په قضا د حق رضا ده

په حُرمت د پاک رسوّل چه په قرآن کښے
خدائے تعالیٰ به څو رنګه دده کړے ثنا ده

د دوزخ له عذابونو په امان شے
بهشتی شے شپه او ورځ مے دا دُعا ده

تردے به هورے خوبن وے فال دِ بنهٔ دے
خدائے تعالیٰ چه اینبے دخوشحال نامه په تا ده

نهٔ یوائے هجران لوټ عبدالقادر کړ
په هر ملک په هر دیار کښے دا غوغا ده

# قصیده (۷)

د بقا بهبود ئے هیڅ نشته فانی ده — په دُنیا چه مینه کاندی نادانی ده

د دُنیا د خلقو کار راته ښکاره شو — د سیلاب په مخ ئے کړے ودانی ده

دا چه ته ئے ودانی گڼړے نادانه — د عاقل تر فهم عین ویرانی ده

تارکان په ئے دے هورے خوشحال وی — تر حاصل د راغبانو پښیمانی ده

جمعیت د زړهٔ په بخره دیک بین شو — د دوبین په بخره شوے پریشانی ده

د محنت په لارے ځه که مُراد غواړے — ستا د مراد تر مینځ پرده تن آسانی ده

هندو هم په خلهٔ وئیل کا چه خدائے یو دے — و قضا ته ځان سپارل مسلمانی ده

نفسانی کارونه کفر ور ښکاره دینی — چه ئے بخره له ازله روحانی ده

په پریښودل به د مراد، مُراد حاصل کړے — کام په کام د پاسه کیږ ده کامرانی ده

چه په لهو په لعب ئے ضائع نهٔ کړے — دا څو ورځے غنیمت زندگانی ده

نورانی ئے په طاعت په عبادت کا — که شپه د بیدارانو ظلمانی ده

چه ماذون له حقه نهٔ وی شیخی کاندی — باور وکړه شیخی نهٔ ده شیطانی ده

چه ئے صرفه د پیرانو په خدمت کړه — هم هغو بهره مونده له ځوانی ده

خود پرست د عاشقئ ته هوس نهٔ کا — مرتبه د عشق اول جانفشانی ده

تحیّر په موافق د معرفت دے — څو ئے شناخت هومره ئے زیاته حیرانی ده

په یوه دانه اووهٔ سوهٔ دانے اخلی — په دا شان د نیکو کار و دهقانی ده

پاس د زړهٔ په اَسی قدم، پاس د نفس کړه — پاس په تخت کښینه شاهی ده خاقانی ده

د مزرې غونډے سرکوز نۀ ځي په لار سے
په هر لور د لکه شوے سنګراني ده

پوښتیده به په هر یوشی له رعیته
هر سړی ته ئے ورکړے سلطاني ده

حکومت ناسته په پُل د جهنم دے
سرهله کله د عالم حکمراني ده

رعیّت لکه رمه له پسوهٔ ژغوري
بادشاهي په حقیقت کښے شپاني ده

په ستم ئے تمامي جهان خراب کړو
څۀ عجیب داورنګزیب جهانباني ده

کۀ دستم غونډے ځوان لاندے کړے دا څۀ شي
د زیږه دستو جفا وُړه پهلواني ده

دا به واړه ستا په ځان باندے تاوان شي
کۀ دِ ملک کۀ دِ دولت، کۀ دِ خاني ده

عالیشان به په نخوت په کبر نۀ شے
کمیني کړه، کمیني عالیشاني ده

په دا قول متفق دي هوښیار واړه
چه بلا ترهر څۀ سخته لساني ده

کۀ خبر په حقیقت ئے د خیرو
خاموشي کړه، خاموشي سخنداني ده

چلهٔ ژبه ئے په ځان باندے بلا شوه
چه بلبله په قفس کښے زنداني ده

ځان ترهرچا کم ګڼړه عبدالقادره!
کۀ پوهیږے هم په دا کښے کلاني ده

* * *

# (۸)
# قصيده

په خاطر پاندې مې غم انبار انبار شي — په راتله دِ همه واړه تار په تار شي

همیشه راځنه ناست وُسه په څنګ کښې — ستا په ناست مې زړهٔ آرام نیسي قرار شي

بناڅته دچین ماچین کهٔ دبل ملک دی — همکی دِ ستا ترکښلیه مخنه خوار شي

ستا له حاله به وتاوته څهٔ وایم — پټ احوال به مُو په مُو درته آشکار شي

دا رشتیا وېل ترخهٔ په سړي لګي — چرې نهٔ وي چه خاطر دِ پرې آزار شي

په ترخو کښې نفع زیاته ترخوبه ده — پاندې څکه رغیدنه دبیمار شي

چه وېل دنیکخواه نغوږي پرې عمل کا — هم هغه به په خپل عمر برخوردار شي

د زړهٔ غوږ باسه وَماته چه وُ وایم — څو خپرې چه کوم دِ ترې نثار شي

دصورت خوبي همه په عاریت ده — څهٔ خوبي به ددنیا په مستعار شي

ستا پخوا بناڅته هم وو، وارېٔ تېر شو — په خپل حسن به ستا څهٔ رنګ اعتبار شي

دبناڅت نو دِیو څو ورځې باقي دی — پژمُرده به دِ دمخ تازه بهار شي

صباحت به دِ بدل په قباحت کا — چه دِ تور وېښتهٔ بنګاړهٔ په پِسن عذار شي

دغه مخ چه دِ ترګل بناڅته روغ دې — د وېښتو په تهوکیدل به لکه خار شي

دا چه اوس درپسې ګرځي دلې دلې — همکی به لتا بیارته په وار وار شي

دغه ناز به دِ بدل واړه په نیاز شي — څوک به نهٔ وي چه د ناز دِ خریدار شي

هم هغه چه اوس بلا دِ ستا اخلي — تربلا به ورته بد دِ ستا دیدار شي

ستا وېښتهٔ به لکه خار ورباندې ځرخي — چه په تا مېئن له تابوس وکنار شي

دېنړو په ځائے به ناست ئے په مجلس کښے — اوس دِ ناسته کهٔ په غېر کښے دخپل یار شي
داچه اوس دِ په لیدلو نهٔ سړی ی — هم هغه چه تا ته گوری به ئے عار شي
کهٔ کهٔ چه تېر ساعت درته زړهٔ یاد کا — ستا به سرے وښکے روانے په رخسار شي
کهٔ دِ خوی خصلت دښو وی خوښ به وُسے — کهٔ خصلت دِ د بدئ وی ستا به زار شي
دسیرت خوبی پیدا کړه چه باقی ده — په دُنیا په آخرت به دِ پکار شي
مېړے په علم په ادب په ښهٔ خلقت کړه — چه دے هورے دِ جوړ برے کاروبار شي
خود به علم خوئ ادب درته بیان کا — څو خویونه به زما وتاته شمار شي
نیک اندیش، نیک گفتار، نیک کردار شه — چه محمد دِ په هر کار پروردګار شي
کمینی کړه چه هر چاوته عزیز وسے — کبر مهٔ کوه آخر کبرژن خوار شي
همیشه خلهٔ پټه وُسه په مجلس کښے — په ضرور دِ ستا دَخلے ویئل اظهار شي
کهٔ دِ سر دړ وی دروغ مهٔ کړه رښتیا کړه — دروغژن سړے بے قدره بے وقار شي
له هیچا نه غیبت مهٔ کوه چه اور دے — کل طاعت به دِ سوخته په دغه نار شي
سخن چین مهٔ شه، نمام چه په قیامت به — دا دوه گروهه په دوزخ کښے گرفتار شي
چه وعده وُکړے له چا نوره ئے مهٔ کړه — فرق به دا د مسلمان او دکفار شي
قناعت په خپل قسمت کړه حریص مهٔ شه — د ازل ویش به نهٔ لږ نهٔ به بسیار شي
سخاوت کړه کهٔ په لږ وی کهٔ په ډیر وی — په دا خوئ سړے هر چاوته رویدار شي
شجاعت په موافق د شریعت کا — بے له شرعے به له تا کهٔ څوک آزار شي
بے قضا دِ نښته مرګ په غلیم مېړے کړه — کهٔ په لاس دهمه وارو ذوالفقار شي
فخر مهٔ کړه په دُنیا، دهندو هم وی — د مومن په ښو خویونو افتخار شي
له هغه مجلسه تښته په گروهونو — چه ویئل پکښے د شر یا د اشرار شي
ناست ولاړ دِ هغه زلمیانو ستا وی — چه په تا کښے ئے ښکاره دښو آثار شي

چې ئې مینه په شریر وي، دے شریر شي
هر چه مینه په اخیار وکا اخیار شي

چرے نه چه وزنا وته زړهٔ هسک کړے
ځوانی مرګ به په دُنیا کښے زناکار شي

د دوزخ د عذابونو به لا سخت وي
په قیامت چه بُونیش روان ددهٔ مردار شي

بنګ شراب مهٔ خوره چه ورځې د قیامت شي
خمرخور د بت پرستو په قطار شي

یو ذره خلاف د شرعے قدم مهٔ ږده
د کتاب په موافق دستا رفتار شي

کهٔ په دا وئیل عامل شې زما جانه
ستا مکان به د جنت تحت الانهار شي

ستا په شعر آفرین عبد القادره!
په پښتو خو به هم هسے رنګ ګفتار شي

* * *

# قصیده (۹)

کهٔ دِ نشته په یقین کښے درغلی
دکوټے د سپی ئے تل څټه ستلی

په مزریوئے شرف دے د سګانو
چه انکار کا د غالی دے وغلی

کهٔ ئے سپے په شور دریاب کاټبه تره
هغه دَم به ئے اوبهٔ شی عسلی

دکمال ویره ئے هیچ د زوال نشته
لایزال ئے دے کمال لم یزلی

تمامی عالم دُرود ورباندے دائی
حُسنی حُسنی په خفیه حُسنی جلی

موجودات واړه لښکر، دے ئے بادشاه دے
نمرسپوږمئی ستوری ئے واړه مشعلی

انبیاء ئے د لښکر جماعت دار دی
سپاه نهٔ پرېږدی چه کا بدعملی

نقیبان دی نقباء چه اهتمام کا
دا دِ تا دوئ خدمت سزا ولی

هم په دا امید ادریسؑ درزی ګری کا
کهٔ ئے ساز د براق جُل کا مخملی

د صالحؑ ناقه تل سروهی له کا نږیه
چه ئے نهٔ شوم په لښکر کښے پرتلی

دخلیل غوندے به خلاص شے له نیر انه
کهٔ دده په عشق کښے نهٔ ئے خللی

عرش ئے تخت چه باندے ناست دے عدالت کا
چه اودس پرے کا کرسی ئے صندلی

جبرائیلؑ ئے جلودار زین پوش پغاره
په رفتار نهٔ کا یو دم معطلی

میکائیلؑ میکال په لاس خدمت ئے دا دے
چه غلے ئے و لښکرو ته ستلی

اسرافیلؑ ئے نے نواز حکم ته ګوری
بے دے کاره په بل نهٔ دے مشغلی

عزرائیلؑ ئے دے شحنه دوزخ ئے حبس
ددین غلهٔ ئے بے عزته ورولی

و صدّیق ته ئے په وخت د رحلت وُوے
نائب ئے زما په حکم ازلی

چه انکار کا څوک دِ تا له خلافته　　　د مغو په دین کښې پریوځی ارجلی

چه رانجهٔ کا د صدّیقؓ د قدم خاورے　　　هاله کشف عطا شی د هرولی

حق وئیل د توکل په قوت کیږی　　　د عمرؓ غوندے بل څوک توکّلی

کهٔ حیا د عثمانؓ پریوځی په خلق　　　په ایمان به درست جهان شی ممتلی

حق د چا دے چه علیؓ سره سیالی کا　　　ورته خدائے وے " لَافتیٰ اِلّا عَلِیْ "

څلور واړه، څلور رُکنه د اسلام دی　　　د اسلام کوټه بے دُوی ده خللی

محبت د هر اصحاب په زړهٔ کښې ځائے کړه　　　چه حاصل دِ شی د خدائے پیژندګلی

د اصحابو محبت قلبِ سلیم کا　　　نهٔ نفعه کا چه ئے زړهٔ وی عللی

کهٔ په چا دِ محبت په چا دِ نهٔ وی　　　رافضی شوے، خارجی، معتزلی

په حرمت د کربلا د شهیدانو　　　هم مے لرے کړه له زړهٔ طول املی

یا الله عبدالقادر وړځنی خلاص کړے

په حصار کښې د هوا دے قبلی

* * *

# (۱۰)
# قصیده

مرد هغه چه په بخشش لکه دریاب وی — په ښه بد باندے مشفق لکه آفتاب وی
لکه ونکه هسے پست په تواضع وی — د همه واړه عالم مرجع مآب وی
په ثبات کښے ترغوڅ لا ثابت قدم وی — په صفا او په نرمئ کښے لکه آب وی
تل ئے وچولے د میاشتے غوندے ویل وی — دوست دښمن ئے له دیدار کامیاب وی
قناعت لکه همائے په استخوان کا — نۀ ظالم نۀ حرص ناک لکه غراب وی
چه د ظلم لمبے بلے په عالم شی — زړے بریان د دۀ خاطر لکه کباب وی
په نعمت کښے شکر کا په محنت صبر — زړۀ ئے ټینګ په مسبب نۀ په اسباب وی
په قضا د حق راضی خرم خورسند وی — ورته یو جنت دوزخ ثواب عقاب وی
یو زمان ئے زړۀ خالی نۀ وی له یاد و — کۀ په ناسته، کۀ په تللو، کۀ په خواب وی
اوامر لکه سنت ادا کوینه — بیخ ځرکند له نواهی په اجتناب وی
کۀ اشیا ورته ښکاره کما هیه شی — مناجات ئے "زدنی علما" یا وهاب وی
عام عالم ته ناست ښکاری په رفتار کښے — د وصال تر شپے لا تلۀ د دۀ شتاب وی
له تاثیره ئے بد ښۀ لکه مس زر شی — په لمبو د عشق سوخته لکه سیماب وی
تو چه کرځی د دنیا په خرابات کښے — په باطن کښے آبادان ظاهر خراب وی
د ډک سند غوندے آواز نۀ کا بهیږی — نۀ پر شوره پر غوغا لکه سیلاب وی

د دانا د سوال جواب په ادب ورکا — و احمق ته ئې په پټه خلهٔ جواب وی

د ښو بوئیس ئې په همه دیار پریشان وی — دُرست وجود ئې په معنیٰ د مشکناب وی

په ظاهر جامه له خلقه سره خلق — په باطن کښې تابعین وی یا اصحاب وی

هغه مرد وَلی کښَرَه عبدالقادرَه!

چه عمل ئې په سُنت او په کتاب وی

★ ★ ★

# (۱۱)
# قصیده

داکارونه چه نن کانده عیانی دی | هیڅ په خوا په خاطر نه وو آسمانی دی
چه په وهم فهم نه هغه ښکاریږي | هوښیار ځکه همیشه په حیرانی دی
کله هسې کار ښکاره شي چه غمژن شي | کاه کارونه په سبب د شادمانی دی
ساقی راوړه پیاله چه راته یو شي | غم بنادی، ثبات هیڅ نه لري آنی دی
نن نسیم د پیښبور له لوریه راغی | څو وینائے راته کړي زبانی دی
چه نن شپه مومندو ووهلې تور سے | چه وهلی نه افغان نه تورانی دی
لیندوغن په غشو وکړه کشاد کانړۍ | په سر تورې تورې وهی جمال خانی دی
کوځې له میانه د جمال سپایانو یوون | چه په ننګ توره وهی جانفشانی دی

---

ؔ دغه شعر کښې یوې مشهورې تاریخي المیې ته اشاره ده۔ چه رحمان بابا او حمید بابا ورته هم پخپلو خپلو اشعارو کښې اشارے کړے دی۔ ناصرخان چه د کابل صوبیدار وو۔ جمال خان ته ئې په طور د انعام دولاذره روپئی ورکړے۔ هم دغه جمال خان پخپله ارباب ئې کښې د عیسی کلے لوټ او وران کړو۔ خوشحال موده پس چه بیا د جمال خان د زوئے جلال خان وادهٔ تیار شو۔ نو بیا هم د وادهٔ په دغه شپه عیسی د جمال نه د بدل اخستو په غرض د جمال خان په کور او کلی حمله وکړه۔ جمال خان ئې مقابله وکړه۔ ولے پاتے راغلو او په زخمی حالت کښې په خپل کور ورننو تو۔ عیسی ئې په کور اور ونګولو۔ چه د وادهٔ اتیا تنه نر ښځے او ماشومان پکښې وسوزیدل۔ جمال خان او د هغهٔ یو دوست ګل خان هم په دغه اور کښې اوسوزیدل او مړه شول۔ دا واقعه د کال ۱۱۲۲ھ ده۔

چه لښکرے د مظلومو اعانت کا — خدائے ئے مل شه دا لښکرے رحمانی دی
لاله زار ئے شګفته په سره اما ره کړی — هر چه دا بهار نه ګوری زندانی دی
دیارے او به ئے سرے لکه شراب کړے — د سربند کانړی همه ارغوانی دی
یګانه زلمیو غښ و سله وکړ — چه وهه فلانی وهه هندوستانی دی
توره شپه په توره وورځ لکه صبا شوه — ځلیدل ئے لکه برق نیسانی دی
همیشه پښتون مومند و دے دړوند کړے — که سبب ئے د خفت میر افغانی دی
چه په طمع د دُنیا کاسدی جنګونه — ننګ ئے ورک شه که رستم دستانی دی
یوسفزی چه زر وینی ننګ پریږدی — حریصان دی، طامعان دی، نفسانی دی
په خله هر پښتون د ننګ خبرے کاندی — ننګ هغه کا چه نانی نه دی جانی دی
زرنانی شه صدقه ترجانی ځوانه — پښتون دیر دے، امّا څه یکان نانی دی
دا متل دے تیغ په اصل غوځوُل کا — د مومند و توره اوس نه دی کانی دی
آفریدی شینواری جنګ په غرونو کاندی — غوریاخیل په میدان جنګ کا میدانی دی
خو ئے نه دے د کتو د نځ دپرے بنائے — چه نفاق کا همیشه په پښیمانی دی
فریفته ئے په ویل مه شه نفاق دی — هغه خوک چه د لښکر په ویرانی دی
د مغل له دے لښکر و پروا مه کړه — اتفاق ئے سره نشته ځان ځانی دی
په قسم ئے مبادا چه باور وکړے — سوګندونه ئے دا مونه شیطانی دی
له بادشاه له شهزاده کا نو چه وسواس وی — اخته شوی دوئ په جنګ سلطانی دی
د سرونو نردبان ساز کړه بانده خیژه — مرتبے ته ختل نه په آسانی دی
نه له چا ئے طمع شی، نه له چا ویره — څو خبرے رښتیا کړی کرلانړی[1] دی

---

۱ مطلب ترے د شاعر خیل ځان دے ۔ خټک کرلانړی دی ۔ د خټکو نه علاوه وزیر، محسود، شیتک، بنګښ، اورکزی، آفریدی، اتمانخیل او دله ذاک هم کرلانړی یادیږی ۔

(۱)

ذرۀ ئے له رشکه هر گوره درد کا　　چه کړے چارے فلک کج گرد کا
څوانمردان تاست دی آهونه سرد کا　　ذوق وهوس د دنیا نامردکا

(۲)

پیه دیر هوس ئے سره آشنا کا　　په درد او دوک ئے ځله جدا کا
چه دا احوال دے په دا دنیا کښے　　ټوک به څهٔ سینه د ذرۀ په چاکا

(۳)

سړے هر کوړ طمع دراز ه کا　　چه ورته نهٔ رسی هسے آغازه کا
چه څلویښت کاله کم وزیات چینی شی　　پلارے خمیر کا نمسے ئے سازه کا

(٤)

ساقی را پاسه گل غوړیدنه کا　　لغړه ونه به بهار زرگنړه کا
که روکه نهٔ وی چه شراب راوړے　　صوفی به خپله خرقه گهنړه کا

(٥)

چه په نابوده دنیا اتبار کا　　دیښمنا سئی ژړا بار بار کا
چه لږ غبار دے په خندا نهٔ پسندی　　هغه به خاورے په تا انبار کا

(۶)

کهٔ مزکه خپله کیږه پاره کا — حال د نغرلیدو ورته ښکاره کا
خوب او خوراک به له خلقه لاړ شی — تمام جهان به یوه ننداره کا

(۷)

ذِکر هغه دے چه ذاکر فرد کا — د ننه زړهٔ ئے ذِکر په وِرد کا
کهٔ ئے د ذکر باندے غالب شی — دوزخ جهانه ورباندے سرد کا

(۸)

نن گانده چرخ عجب ښانگونه کا — چرگان ککرے چرگے بانگونه کا
له مستئ وازدے تروږی کیدی نهٔ خوری — لوندے په غار کښے مزری پړانگونه کا

(۹)

ناراسته ښځه غنم او ږیشے کا — لا تر پټخانړی اوږیشے تیشے کا
پیشو ترے پټ ځی داورته گوری — هو مره پرے نهٔ شی چه پیشو پیشے کا

(۱۰)

هوښیار چه ناست وی نا پوه خبرے کا — سپی دی تمیږی خوک دِئے کورے کا
چه خوک ئے نهٔ پوښتی خاموش دِوُسی — کهٔ ئے خوتوئے د خپلے شکرے کا

(۱۱)

ډېر شو غمونه ډېر شو آشوب          زړګې په غم کښې سترګې بې خوب
که داخل وشې په عشق کښې سوبه          هغې توبه توبه له منتوب

(۱۲)

مه کړه هیڅ ناته ګیله له بخت          مراد نه مومي هیڅوک بې وخت
شکر وکاږه په هر احوال کښې          بلا ئې لا ده تر بلا سخت

(۱۳)

ستا په دوران کښې اې بې بنیاد          نامراد بهتر دې تر بامراد
په خندا ورکړې په ژړا واخلې          زمونږ توبه شه له هسې داد

(۱۴)

اې د بې زادو د لارې زاد          د نامرادو د زړونو مراد
محتاج ئې مه کړه د بل ورته          راکړه وماته د خپله داد

(۱۵)

اې چې په مخ ورې خوې له ورد          خالي یو دم نه یم دِ تا له درد
ته بې آسیه بهي سیب وې          که تر نارنج مې څهره ده زرد

(۱۶)

چه بې تا پاتې شم بېل شوی په یارانه — ژوندون هر گوره دې پما دشوارانه
ډېر به په غم کښې د آشنایۍ وو — که سر مې ورکړې بې خپله وارانه

(۱۷)

څهٔ زده بې نیازو د تا په قدر — سپی لا غیا کا چه میاشت شي بدر[1]
که ښکلي وارهٔ سکه گلونه دي — تهٔ د گلاب ئې، نور گل دِ سدر

(۱۸)

په چا چه مهر کړې په چا چه قهر — زهر[2] پازهر کړې، پازهر زهر
بحر و بر دوارهٔ دِ تا په حکم دي — په بحر ئې لار کړې، په بر ئې نهر

(۱۹)

په زړهٔ مزریه په سترگو باز — له نازهٔ ډکه خالي له نیاز
تر تا لا کښلي فلک بدرنگ کړهٔ — زنهار بخپله خوبه مهٔ ناز

---

[1] په پښتو کښې وچنار ته وائي (حبیبي)
[2] زهر تا زهر کړې، زهر زهر (رخ)

(۲۰)

درد دِمهٔ وینم ساقي مهوشَ | په شونډو مېنه په مخ آتشَ
له خاصه خُمه صاف مې را نوش کا | زړګې مې خلاص کړه له غل وغشَ

(۲۱)

ځوانمرد هغه دے چه لکه شمع | د ځان په سوالو مجلس کا جمع
د يل دپاره کهٔ په خندا وي | په مخ ئې ډېرومي باران د دمع

(۲۲)

پېښ مې د بدیرے په توره زور شول | زړونه دکبنليو را ځنې تور شول
چه په ځوانئ کښې زما پرے فخر شه | هغه کاروانه مې اوس پېغور شول

(۲۳)

هرچه له ځانه سره مې بنهٔ ليدل | زو يه کهٔ ورونړه واړه مې وليدل
بنهٔ په يېچا نشي نفسا نفسي ده | ما ځېل بے خدايه هيڅوک وُنهٔ ليدل

(۲۴)

ځکه له درده ځبله بېسورم | باران د وينو له سترګو ووړم
واړ مې دکبنليو د ليدو تيرشو | چه خال وخط ئې په ليمو ګورم

(۲۵)

زۀ په خېل ملک کښې خويو خېل زړۀ لرم — هم همغه مات دے چه روغ ئے نۀ لرم
کۀ دِ يکاړ وی درته پيشکش دے — دريغ بے خدائے مۀ کړه چه لتا زۀ لرم

(۲۶)

ديار له غمه خالی يو دَم نۀ يم — هيڅ ساعت نۀ دے چه په ماتم نۀ يم
په زړۀ مے زخم په زخم کښېن دی — کۀ آه فرياد کړم وګړيه کړم نۀ يم

(۲۷)

اللّٰه مے رب دے زۀ ئے مربوب يم — بنده د دۀ يم کۀ خوب ناخوب يم
غرق په او بو کښې کله او سه وينی — نعمت ئے نۀ وينم په نعمت دوب يم

(۲۸)

ترڅو به ياره لتا نه صبر کړم — يا مے به يار شے يا به ځائے قبر کړم
عشق مے په شان دخونی سنړن دے — زړۀ! تا په خله کښې دخونی ببر کړم

(۲۹)

زور کړم غمونو دآشنا زور کړم — له کُل هوسه ئے له دُنيا سور کړم
څو څو تا وُونه را بانده تير شول — نو مے ئے وَچ کړ، هجران ټکور کړم

(۳۰)

زهٔ سه نهٔ وایم چه نیکوکار یم — شیخ یم، عالم یم یا پرهیزګار یم
تهٔ په وئیلو زما ځان پاک کړه — زهٔ کهٔ ناپاک یم، ګنده مردار یم

(۳۱)

بدیم دانهٔ وایم چه زهٔ بناغلے یم — په قرق والی دِ ستا داغلے یم
مرګ مے قبول دے شرل دِ نهٔ وی — تښتې بنده یم درته راغلے یم

(۳۲)

کهٔ نور څهٔ نهٔ دی چه مرے ستا نوم — بس دے دما ته چرته لتادم ووم
تهٔ به زما غوندے مریُونه ډیر موسے — کله به تا غوندے صاحب زهٔ بیاموم

(۳۳)

کهٔ هر څو خوږ یم درمند په زړهٔ یم — قوّت مے کم دے دجواب نهٔ یم
چه یار مے وُپوښتی وایه څهٔ حال لرے — بواب ئے ورکړم وایم چه "ښهٔ یم"

(۳۴)

دیار له غمه په زړهٔ افګار یم — له غمه څهٔ وایم دردمند یم خوار یم
په زړهٔ دردمند یم هرګور بیمار یم — افګار یم، خوار یم، بیمار یم، زار یم

(۳۵)

خلقو ګرم نهٔ یم، کهٔ وینے وُورم[1] — پهٔ شپه او ورځ له درده ښوردم
محروم د کښیدیو له ننداره شوم — چه چشمے کیږ دم خال وخط ګوردم

(۳۶)

که مینے ګول کړم عالم نهٔ پیژنم — بیا تر عالمه آشنا بنهٔ پیژنم
دا آشنا نهٔ دے دآشنا رنګ لری — کهٔ آشنا راشی آشنا زهٔ پیژنم

(۳۷)

ختدا[2] لهٔ ستانه تل په ژړا غواړم — ورکړه دِ خوی دے زهٔ ئے په دا غواړم
له دیو مصرعو نه حرف دسروا خله — همه کړه جمع مغه له تا غواړم

(۳۸)

د جدائی مدت دِ ډیر شو — زیات تر حسابه تر شماره تیر شو
هیرشی له دِ له چه لاړ له ستر ګو شی — نوم مے دِ یاد دے رنګ مے دِ هیر شو

---

[1] شپه ورځ له درده و بلا شوردم (غ)

[2] د دے رباعی جواب رباعی ۲۳۳ دے

(۳۹)

چه باوجود د پیرئ مُرید شو | صدّیق تر نوړو څکه مزید شو
عمرے تېرکړ په عبادت کښے | په لږکی کبر ابلیس مرید شو

(۴۰)

د غم لښکر ے تر زړهٔ چاپېر شو | خلاص ے نشی اوس پکښے گیر شو
سراے د غمونو دے څهٔ سوکهٔ یو ځل | د خوشحالئ ئے کاروان پرے تېرشو

(۴۱)

چه تنگئ لښته وے وخت د نمائے وو | هر حرکت د زما په رائے وو
چه بناخ شوے شوخ شو تبر تر بنځ غواړے | محنت ے واړه ضائع بے ځائے وو

(۴۲)

په اوړ اد ونو د څلوړ قُلو | غوارم له خدایه فُرصت د کلو
صحت د ځان د یارانو واړو | کښتلے د لبره بنیښنه د ملو

(۴۳)

مهٔ د وینم په سترگو نوړو | په خلهٔ زمائے په زړهٔ د نوړو
غوږ د په نوړو یارانو وُخوړل | زهٔ د علط کرم په کیسو سپوړو

## (۴۴)

حسد په زړهٔ کښې د بې حسدو — اور دے ترے بویه حذر بخر دو
چه له مقبولو سره دښمنی کا — هغه سړے دے په شمار د ګردو

## (۴۵)

فخرلوئ کا خلق په بدو — په بد خصلت شول بتر تر ګردو
ګرد شول رسمونه کا شرع ئے پریښوه — د به ما مهٔ کړے په شمار د ګردو

## (۴۶)

بندی په تاریم د دوؤ زلفینو — مست ئے په جام یم د دوؤ عینیو
د طهور مئے به یا ندے ترخهٔ لګی — نوش ئے چه مئے کړل د شفتینو

## (۴۷)

لاړم[1] و باغ ته په نیت د ګلو — د پریکولو، آواز د بلبلو
وکړ، دستے مے له لاسه پریوتے — هسے رنګ مست شوم لکه په ملو

---

[1] بناغلے همیش خلیل لیکی چه په یوه بله قلمی نسخه کښې دا رباعی داسے هم درج ده -

لاړم و باغ ته په نیت د ګلو — د پریکولو د تهولولو
په بوئیں ئے مست شوم بیخوده پریوتم — توان مے هیڅ نهٔ وو لکه په ملو

(۴۸)

ژبه عادت کړه په ښو خبرو | خبرې ښې دي ښځه ترشکرو
دخوند مثال ئې شکرې وائیم | قدرئې ډېر دے ترمزغلرو

(۴۹)

نسیم چه راوړی د باغ په ګلو | بوئیں د دلبرو د ښو کاکلو
له هغه بوئیه ګل هم بوداړ شو | هم بانډې وکړه مینه بلبلو

(۵۰)

ډک مے دننه لړمون په اوړ شو | زړه سمندر دے پکښې ئې کوړ شو
چه ستا دتوړو زلفو په رنګ دے | له بخته خوښ یم چه بخت مے تور شو

(۵۱)

مۀ کړه تۀ وکړه سامان دتللو | پخوا ترهغه چه د بللو
استوا ئے راشي چه اوس رادی ومه | وخت دحساب دے وخت د تللو

(۵۲)

دخپله بخته وچاته زار کړو | دچرخ ناسازے وچاته شمار کړو
ډک دے دکښلیو د کابل ښهر | هومره ئۀ نشته چه یوترے یار کړو

## (۵۳)

څهٔ زده په قدر د لعلو کړو — زهٔ دِ قربان شم تر سترګو تورو
که کینلی جمع د درست جهان شی — تهٔ دِ زمانے نور دِ دَ نورو

## (۵۴)

کهٔ عقل، حوصله، کهٔ تیغ، کهٔ دیګ وو — په پښتانهٔ کښے د خوشحال بیګ وو
زړهٔ همت وته په شمار د سلو وو — زړهٔ سخا ته د صحرا ریګ وو

## (۵۵)

کهٔ بنهٔ خوراک وو، خوراک هم ډیرۀ شو — کهٔ بنهٔ پوشاک وو، پوشاک هم ډیرۀ شو
ربه اوس راکړے د دین خوبنیٔ — کهٔ ډیر ژواک بنهٔ وو، ډیر ژواک هم ډیرۀ شو

## (۵۶)

بل مے په زړهٔ کښے د مینے اور شو — څکه فریاد کړم روزګار مے شور شو
د یار د سترګو سیاسی پریوسته — د صبر صاد مے په سترګو ګور شو

## (۵۷)

عمر مے تیر شو واړه په لهو — بدی په قصد کړم نیکی په سهو
تغل په دا عقل لکه زما دے — جنون بهتر دے تر هسے صحو

(۵۸)

غم پرے هرکوره دجهان زور شو | دننه زړه ئے را څخه خور شو
راغلم ناګاهه په اشنا کلیو | کلی هغه دی عالم پرے نور شو

(۵۹)

له کښیه وُچا وَدهٔ وخت دصبا شو | په هر مسجد کښے اذان ادا شو
راشه چه کښل دِ کرم اوس به بیلیږو | په ځان زمونږه صبا بلا شو

(۶۰)

ځوانی چه لاړه بیانهٔ خوانیږو | ویجاړ شو بویه چه ودانیږو
په مخ استواځی د طلب راغلهٔ | تاسو خدائے بښهٔ ساته مونږ روانیږو

(۶۱)

اے چه برترئے د وهم وخیاله | ستاله صفته ژبه شی لا له
مجلس تمام شهٔ عمر آخر شه | آغاز د مدحے دے ستاله جماله

(۶۲)

داپسے له مانه په زړهٔ کښے یاد کړه | څو دِ لاس رسی مروت داد کړه
زړونه دهر چا په احسان بناد کړه | آزاد بنده کړه ، بنده آزاد کړه

## (٦٣)

د به پکار مې د نیکو کار و کړه — په روی مې عفوه د پرهیزګار و کړه
عمل د نیکو راځنې ونه شو — ځوانی مې تیره په خوشچار و کړه

## (٦٤)

په مجالس کښې بیرون له همه — دا آواز وخوت د خم له فمه
چه زه هم ستا غوندې میخوزیږم — زما له حاله مه شې بې غمه

## (٦٥)

شاباس شاباس محبوبه تالره — راغلې پخپله د عاشق خوا لره
د عاشقانو نمنځنه بنه کوه — خدای دې تر ډیره په دا دنیا لره

## (٦٦)

وار و که د اپند ونه د هوښیار وروره — تل دې د زړه په غوږو ژغوره
دم کار وخت شته خبره ځای لري — وار خطا مه کړه، و وار ته ګوره

## (٦٧)

د میرو میره! د خانو خانه! — د جهانیانو جان او جهانه!
دا رنګ لوی به هله روزی کړې — که وې نیک نیته او نیک زبانه

(۶۸)

دریغه دریغه واژگونه گردونه  د ښتی له مرد کړے خپلوی له دُونه
په نا اهلانو باندے عنبر لونے  لونے په اهلو باندے گردونه

(۶۹)

په وخت دګلو او د ګلو سنه  ځاۓ ۓ کاوۀ شی د زړۀ دننه
چه بهار تیر شی خزان پرے راشی  هسے رنګ سوۀ شی لکه څوک غنه

(۷۰)

راشه راشه بناګسته راشه  زما د غم دجونګړۍ دننه اشه
په هغې لارے چه ته راتللے  د هغې لارے بلا په ما شه

(۷۱)

پیرے چه حل ئے واړه اشکال وُسه  په دواړه کونه خرّم خوشحال وُسه
دا نصیحت ئے راته همیش وایۀ  چه خوبش له خدایا په مړ احوال وُسه

(۷۲)

چه حاضر نۀ وی ورځنی بنۀ وایه  کۀ هر څو بد وی ورته لیمۀ وایه
کۀ لږ ډیر عیب په یار کښے وُوینے  چه مخامخ شی ورته ئے وُوایه

**(۷۳)**

مېن دا یاد شو دِ تا له زنګه — کۀ یو درنګ کښیني زما تر څنګه
کۀ آشنا نۀ ئے د آشنا شان لرے — ځار شم قربان شم تر تا ملنګه

**(۷۴)**

مۀ شه چه جاه ئے په افزوني شۀ — سفله فرعون یا قاروني شۀ
د مردکانو په غوښو مست وی — ورځني ځان ساتئ ګیدړ خوني شۀ

**(۷۵)**

ارمان ارمان دے کږ رو فلکه! — عین په زړۀ دۀ دم چا لکه
ستا له ګردشه خونه دِ ورانه شه — د جدائي تیرۀ ګزن لکه

**(۷۶)**

فریاد فریاد دے له هغه دَمه — چه راښکاره شی اجل له همه
ما به یواځے روان کا کور لره — په ډیر ارمان په ډیر المه

**(۷۷)**

بیلتون دِ سخت دے په ما ترناره — بېکښې ورتیرم د خدائے دپاره
یو دَم لمانه مۀ جُدا کیږه — تر تا قربان شم مینه یاره

(۷۸)

ثَنا دګُل شی له کښلیه بُویه          صفت دمرد شی له نیکه خُویه
اهل به نهٔ کا ستائنه یمبِرے          دګُل له رنګه، دمرد له رُویه

(۷۹)

خوار ه حیرانه بنی آدمه          صورت دِ دوغ دے تمام له غمه
ژوندے غمژن ئے، مرده غمژن ئے          راغلے مهٔ وے کاش له عدمه

(۸۰)

هر څوک چه یو کا ذرهٔ خله خپل دواړه          دویم په نیت شی ثابت له واړه
کهٔ کړے وړغے په دین دُنیا کښے          تاوان ئے واړه زما په غاړه

(۸۱)

نادان به وائي مینه آسانه ده          چه مینه کاندی مینهٔ[1] ئے ورانه ده
په نام وننګ کښے دسربښند نه شی          دنام وننګه وتنه ګرانه ده

---

[1] کوړ - کاله.

(۸۲)

چه دانا سازے د چرخ زغمونه ‌ ‌ ‌ لړمون مو درست شو سره کرمونه
یو دِ جدا کړو له خپله ملکه ‌ ‌ ‌ بل دِ راپیش کړهٔ د عشق غمونه

(۸۳)

چه ے به طمع دُ دُنیا چاته شوه ‌ ‌ ‌ له همه واړو په وار وار ماته شوه
اسرے د خپلو پردیو پاتو شوے ‌ ‌ ‌ اوس ے یواځے اسره وتا ته شوه

(۸۴)

مینه څو رنګه مزه لرینه ‌ ‌ ‌ خود به پوهیږی چه ئے کوینه
کله تر واړو تر خو ترخه شی ‌ ‌ ‌ کله تر واړو خوږ و شیرینه

(۸۵)

که هیر څهٔ درکا وربانډِ مهٔ ویاړه ‌ ‌ ‌ له خدایا نور څهٔ بے خدایه مهٔ غواړه
ژړا د قرب ژړا د بعد ده ‌ ‌ ‌ وخدائے ته ژاړه، له خدایه مهٔ ژاړه

(۸۶)

کهٔ هر څو خوږ ئے د کبنلیو نا نه ! ‌ ‌ ‌ ترېخ شے چه تیر شے زیات ترانداز ه
کهٔ په لذّت کبنے شکرے بنے دی ‌ ‌ ‌ په هیر خوراک کا بلا درسازه

(۸۷)

په لارے تللم په مخه راغله　　په مخ ترکله بناسُته آغله[1]
داغ ئے بیانوے راباندے کښیښی　　زما خاطره! پیدا ئے داغله

(۸۸)

هیڅ نهٔ پوهیږم داڅهٔ بلا ده　　چه ګیا شوے په زړهٔ زما ده
لږمون مے سوزی قرار مے نهٔ شی　　اوس دے کهٔ مینه دِ دلربا ده؟

(۸۹)

ربه! دلطف کرم ؤماته کړه　　بے تا مے مینه دهر څهٔ ماته کړه
چه صورتونه څنې پیدا شی　　نظر دمهر په ښاځکی ماته کړه

(۹۰)

لکه ارواح څی دچاله ځانه　　چه جُدا کیږی یاران لمانه
هسے ساعت خو بلکه تر دانه　　په ما لا سخت دے لرے لتانه

---

[1] یعنی بناسُته او مرغوبه او ښکلے

(حبیبی)

(۹۱)

دیه الله غیرو چاره وے ورته غوره		باران د فضل را باندے وورهٔ
زهٔ که بدکاره یم لائق د ننار یم		ته ځانته گوره ومانه مهٔ گوره

(۹۲)

واه واه سره یه! د تا کاره ونه		په خپل همت کړے څهٔ کو پاره ونه
په دام له سینده ماهی وکاږے		په دَم له سورے اژدره ماروته

(۹۳)

لږ مے په خوب ښکنے د دلبرهٔ ولیده		ډیر مے تر لعل و تر یاقوت سرهٔ ولیده
چه ویښ له خوبه شوم ستر گے مے ومښے		ډک مے له وینو دواړه ولیمهٔ ولیده

(۹۴)

اے همه شاهه چه د وژیر نشته		ستا له درگاهه د چا گزیر نشته
ستا له کماله ، فضله امید لرم		کهٔ په تقصیر ښکنے زما تقصیر نشته

(۹۵)

یار مے په خوب ښکنے ډیر سخت زګوره ولیده		مخ مے په وښیو د فراق سوړ ولیده
چه خواب نامه مے د تعبیر وکته		ددهٔ صحت مے د زړهٔ سرور ولیده

## (۹۶)

په هیڅ نوښه په هیڅ دلګیږ ده      داوینا واروه لسا په حسیږ ده
هیڅ خبر نه ئې چه څه ئې څه به شې      وې غافل ئې د ځان له ویره

## (۹۷)

چه ذره دا یاد کا تیر ساعتونه      وښکې راتوې کړم په رخسارونه
وار د دلبر د دیدن تیر شو      اوس مې نصیب شه ساړه آهونه

## (۹۸)

دا چه ښکاریږی، که دا هم داده      دا په ظاهره باطن کښې داده
دې هورې ئې خلاصې نصیب شی      چه خوار شی خلاص شی دد له داده

## (۹۹)

په ورځ توبه کړم په شپه ئې ماته      لاس شی مینه په بدو زیاته
سکه نور بایده دی چه توبه ګار شم      له دې توبې نه څه زیان وماته

## (۱۰۰)

د دُنیا ناوې که هرڅو ښکلې ده      په اُووه رنګه زیور پسلې ده
نور دِ اخلی بهره له وصله      مُونږ په وُجاړه مینه تیولې ده

(۱۰۱)

نن په دا ملک کښې عجب جن ده — په رنګ د حورو په خوئ د جن ده
په سوال کښې هوکے بے آیه نهٔ کا — هیڅ نهٔ خبرېږي د چا له چنده

(۱۰۲)

ځار شم قربان شم د پلار ترپنده — راته ئې ووے "زما فرزنده!
لذت دُور کړے تر ساتل دېر دے — خوئې خبر نهٔ دے ممسک له خونده"

(۱۰۳)

ځواني عاقل ته لکه دُنیا ده — پیري په مثل لکه عقبیٰ ده
چه څهٔ عمل ئې په ځوانئ کړے وي — د هر عمل ئې پیري جزا ده

(۱۰۴)

هیڅ نهٔ پوهېږم چه لا به کله — بندیان آزاد کړے څښتنهٔ خپله
حاجت د خلے د عرضونو نشته — نهٔ خو د خبرے زما له دِله

(۱۰۵)

ښخه په ما باندے د خدائے د پاره — نظر د مهر څهٔ خو کړه ماره
عاجز یم توان د غمونو نهٔ لرم — کورے غمونو وته مهٔ سپاره

## (۱۰۶)

مونږ ړانده يو، زمونږ فعلونه     همسا ځکوني دي وړ پسې ځونه
کۀ فعل ښۀ لرې اندوه هيڅ مۀ کوه     کۀ لاړ کوږی لری يا ګړنګونه

## (۱۰۷)

راشه کۀ ګورې سرې بې پښده     بندي په لاسو په پښو بې بنده
په ډېرو سترګو ړانده نۀ وينې     شنوا غوږونه کاڼۀ له پښده

## (۱۰۸)

په زړۀ مې ستا نه انديښنه ډېره ده     واړه خوښي مې له دله هېره ده
هر چا ته تېره ده دُنيا بود نۀ لري     اوس پرې ښۀ پوهه شوم په تحقيق تېره ده

## (۱۰۹)

نۀ ماښۀ کړي دي نۀ به ښۀ کړمه     چه دا کوې ئې هغه کومه
نوم د ژوندون مې نوم د علم دې     مريم عالمه مريمه مريمه

## (۱۱۰)

چه ښۀ وي خلق ورته ښۀ نۀ وائي     ښۀ دي چه بد وي ورته ښۀ ووائي
نظر په خدائے کا خلق ته مۀ ګوره     کۀ ورته بد وائي کۀ ورته ښۀ وائي

(۱۱۱)

وخت د سحر شو پريونه ببتلے   له کښنيه لور په ۱۷ اوختلے
ديار دراغلو وعده شوه تيره   په دې کتل ے سترگے وتلے

(۱۱۲)

چه به ترے نهٔ وو گلونه لاندے   خوب به ئے نهٔ شو په پالنگ باندے
اوس په لحد کښے پراتهٔ په خاوړو وی   پرے زرغونهٔ شول گنډيرى بپاندے

(۱۱۳)

د عارفانو دخلے کلام دے   چه ترے عبرت واخلى ترے سلام دے
عيش و عشرت د دُنيا گُل وا ړه   بُنياد هيچ نهٔ لرى تش احتلام دے

(۱۱۴)

دوئ په کور کښے اوچ ټوک به ژوئ   زوئے ئے له لوږے کويلى کوئ
دبنتيا متل دے هوښيار وئيلے   دُنيا خوبن ده د ترخان تر زوئ

---

له دارباعى د "ب" په چاپى نسخه کښے نشته ـ د "خ" نه مو نقل کړه ـ

## (۱۱۵)

یارے کۀ هر څو ورته بسر لوری　　قهر و ستم کا همیش مے زوری
لا تر دا زیات مے واره قبول دی　　څو یو دِ نور و وَته نۀ گوری

## (۱۱۶)

غافله وُخوړے داسترگے تورے　　زۀ تا ته گورم، ته بل ته گورے
زما د مینے لافے هاله وَهه　　کۀ زړۀ له غیرو مینو وڅغورے

## (۱۱۷)

کۀ هغه یار مے ظالم په یار ته دے　　خیال ئے داغلے زما کنار ته دے
ځائے به دِ پاسه په ځل تندی کوم　　گله ! چه رنگ دِ زما و یار ته دے

## (۱۱۸)

څو شکر خوارے خاوړے خورے شولے　　دیرے پکړئ ئے د خیال خورے شولے
چه تل سورلی ئے په عراقیانو وه　　اوس تورے خاوړے پرے پاس سورے شولے

## (۱۱۹)

چه پکښے اینبی بنۀ صورتونه دی　　څکه له مزکے بنکاره گلونه دی
قدم پرے وړو وړو په احتیاط بده　　دا تورے خاوړے کښلی مخونه دی

(۱۲۰)

تقدیر د ریاب دے موتړه خسنړی — په حال هیڅ نهٔ یو چا خبر کړی
چه دا دریاب به موچرته بیائی — هم ئے له کومه ځایه راوړی

(۱۲۱)

د غم ښنکرے په زړهٔ هر دم راځی — یو ښنلے نهٔ وی، بل پرے سهم راځی
په خوب کښے کله بنهٔ ساعت لیده شی — اندیښنے ډیرے شوے هغه‌هم کم راځی

(۱۲۲)

هرچه امیر د ښنکر بیدل وی — یا پرے خبرے د داد مشکل وی
تل به ریتلے شرے ګرځی — په هر محفل کښے به منفعل وی

(۱۲۳)

ځنی هوس کا مینه په باغ لری — څوک مئے پرسته جب د ایاغ لری
دا دوا ړه ګروهه بوالهوسان دی — عاشقان مینه د زړهٔ په داغ لری

(۱۲۴)

په ونه سروه، په مخ ګلزار ئے — په دواړه زلفو عنبر نثار ئے
خوبی د حسن زیاته تر حده لرے — عیب خو د دادے د ډیر ویار ئے

## (۱۲۵)

دیارغمونه چه هومره بنه دی — چه ئے ډوایم خوهم پټ بنه دی
ناحق به نورکرم اخته په زړه کښے — غم به ئے زړه ساتم د نوړ وڅه دی

## (۱۲۶)

په زړه مزرے په سترګو باز ئے — ستر ګے منګلے خونړین ته وازے
سازے ناسازے چارے په ما کوه — په ما د واړه ناسازے سازے

## (۱۲۷)

په زړه مزرے په سترګو باز ئے — سر ترقدمه له خوبئ ساز ئے
هرڅه د بنه دی عیب د دا دے — چه له نیاز منو هرګور بے نیاز ئے

## (۱۲۸)

یارے که هم خو راته ناساز وائ — پرے خوشحالیږم چه ئے له ناز وائ
چه راته ډکا بنیسرے بښکنځلے — وائم که تل ئے راته باز با زوائ

## (۱۲۹)

باران وریږی څڅواکی څاڅی — نسیم را والوت سنبل پرے ناڅی
اسباب د عیش واړه موجود دے — ساقی ته ګوره، که دے را پاسی

(۱۳۰)

دانا په مثل د شهسوار دے      پروت که په مزکه وی هم قدردار دے
نادان سرے په مثل غبار دے      لاړ که آسمان ته شی هوړ هم خوار دے

(۱۳۱)

د ګل له غمه بلبل فغان لری      ګل له خزانه خاطر پریشان لری
دا ګناه ستا دے د صبا باده      نه ئے ګلونه نه ئے خزان لری

(۱۳۲)

پسین چه بدخوئ وی تر نیکخوئے تور بنه دے      چه ستا په راځئ پردے وړور بنه دے
بنه هم هغه دے چه ستا په ځان بنه وی      تر سرو ګلونو په ژمی اور بنه دے

(۱۳۳)

بناست د لاړشو په خوئ بنه نه ئے      یا خو غوښکے ئے یا پړانګ لیوه ئے
اوس لما لرے په ښنګ ګرځه      نه هغه زه یم، نه هغه ته ئے

(۱۳۴)

مخ چه د حسن له غوړه سپور شی      عاشق ګرم نه دے که زړه ئے تور شی
ګل چه تازه وی ځائے په سر کیږی      خزان وهلے لائق د اور شی

(۱۳۵)

غم دِ کهٔ هر څو په خاطر ډیر شي — نهٔ وي چه زړهٔ دِ پکښې تیر بیر شي
لکه چه وار د بنا دئ لاړ شهٔ — هسې په وار د غمونو تیر شي

(۱۳۶)

عام ورځ چا ته څښتن د ساه وائ — په تخت چه کښیني ورته بادشاه وائ
ژوندے هغه دے، بادشاه هغه دے — چه تل په زړهٔ کښے الله الله وائ

(۱۳۷)

د عشق په کار کښے چه څوک صادق شي — دیار د مهر هاله لائق شي
دوئ د دواړو ترمینځه ووځی — عاشق معشوق شي، معشوق عاشق شي

(۱۳۸)

نن مے په زړهٔ کښے د کښلیو خیال راغے — په خلهٔ وایه نشي، یو هسے حال راغے
مګر یار راشي چه مے ترے خلاص کا — ګنړه پوهیږم چه لوئے جنجال راغے

(۱۳۹)

نن چه په حسن د کښلیو سر دے — هم هغه کښلے زما دِلبر دے
څښتن ئے تر مخه بنائسته تر دے — خدائے ئے راپیدا دهٔ عجب بشر دے

(١٤٠)

کهٔ هر څو خوئ او خصلت پوشان لرے — همیش فتنې کا عاشق پریشان لرے
راشه چه دواړه سترګے دِ کښل کړم — زما دیاره څهٔ خو نشان لرے

(١٤١)

مخ کهٔ تر نمره هر څو درخشان لرے — شونډے سرهٔ لعل د بدخشان لرے
ستا له یارئ زموږ توبه شه — چه خوئ خصلت د ښاروی پشان لرے

(١٤٢)

که ښے ښے نیچے کهٔ ښهٔ پوشاک وی — کهٔ ښهٔ اَسونه کهٔ نو راملاک وی
چندان نقصان ئے سړي ته نهٔ رسی — ځانته او دین ته بد ډیر خوراک وی

(١٤٣)

ابشاره؛ وے دا هسے ژاړے ؟ — له چا فریاد کړے څوک پسے غواړے
کهٔ تل فریاد کړے له کاڼی سرهٔ هے — بیا به رانشی او بهٔ چه ولاړے

(١٤٤)

ذرهٔ ئے تر هومره غمو پائمال شی — ګمان ئے نشی چه بیا خوشحال شی
وَ نامحرم ته احوال وایهٔ نهٔ شی — محرم ته نهٔ وایم چیرے ملال شی

(۱۴۵)

کارکوه کار، پکار هم کار دے　　تاوان په ځان باندے خالي گفتار دے
عقل څهٔ یل دے، خبرے نور څهٔ دی　　کوتره گونگه طوطا طرار دے

(۱۴۶)

کهٔ زر دوستان لرے یو غلیم شوم لرے　　زړهٔ ئے له غمه عاقل مغموم لرے
کهٔ نور ځان روغ وي یو غاښ دِ خوږ شي　　په فراغت کښے به اندام کوم لرے

(۱۴۷)

بحر خاموش دے سیلاب غرغر لري　　سیلاب تش لاسے سینه لمن پُر لري
د سیلاب گیدره له کانړیو ډکه ده　　بحر په گیدړه کښے قیمتي دُر لري

(۱۴۸)

کهٔ یاس له حقه تحقیق حرام دے　　یاس له مخلوقه دحق انعام دے
اصیل بنده کا، خلاص شوے بند کا　　طمع له خلقه دخلقو دام دے

(۱۴۹)

سحر سحر چه نوبت غړیږي　　دا رنگ آواز کا کهٔ څوک پوهیږي
چه زهٔ دیل وُم، بیا به دیل شم　　په ما ناحقه څوک هوَسیږي

## (۱۵۰)

آروے؟ بلبل د بهار څه وائی ؟ چه هميش نۀ پائی مينه پړنۀ بنائی
نن خو د ګلو بنائست کمال د ے دريغه تر ګانده پورے کۀ ؤ پائی

## (۱۵۱)

غمژن کۀ ګرځی، که کښيني سپاسی آه و فرياد کا د وښکے ئے څاڅی
ورته ښکاريږی سکه ويرونه کۀ نور وګړے نوس کا ناڅی

## (۱۵۲)

يارے په مثل لکه آفتاب د ے هم بے حجابه هم په حجاب د ے
د مخ شعلے ئے د مخ پرده وی نور د آفتاب ، د آفتاب نقاب د ے

## (۱۵۳)

چه کښنۀ پورته قطار قطار ځی وی نارے فرياد کا په اضطراب د ه وی
راځی بيل شوی ياران را ياد کا په مخ ے وښکے لکه رود بار د ه وی

## (۱۵۴)

تۀ چه د اهسے لما کنار کړ ځے ځان ناآشنا کړے بيګانه وار کړ ځے
زۀ بنائسته يم مشتاق ے د يں دی تۀ بے يارده هميشه خوار کړ ځے

## (۱۵۵)

اے چہ عیبونہ د بل اکثر وینے — خپل ځان ترنوږو خلقو بهتر وینے
سر د همه وُ عیبونو داد سے — چه د بل عیب د ځان هُنر وینے

## (۱۵۶)

د کړلو نهٔ دی دا دوه خبر سے — دوا ړه هرګوره له عقله لرے
په نامرد زویه چه تقارے وهی — بل په بد رنګے ناوے سندرے

## (۱۵۷)

چه عاقبت به له دنیا لیږ دے — ولے دا هومره طولانی بلیږ دے
چه وخورے وخورے، چه ورکا یوسے — نور به ئے یوسی چه زړ دلیږ دے[1]

## (۱۵۸)

خندا هوس شی له جاهـلـئ — حُزن انـدوه شی له عا قـلـئ
کهٔ لږ بیدارشی خونه به وُرانه کا — جهان ودان دے په غافـلـئ

---

[1] یعنی دلے پړ دے

(۱۵۹)

چه شجاعت کا دنیا په کف لري ۔۔۔ نوم به دنیکو په هر طرف لري
هر چه حاصل کا دا دواړه خوبیه ۔۔۔ هغه میراث د شاهٔ[1] نجف لري

(۱۶۰)

چه نور وګړي لهٔ تا ویزار شي ۔۔۔ نیلوي د خپلو حاله پکار شي
کنه په ورځ د راحت تر خپلو ۔۔۔ بیګانه هم تر سري څار څار شي

(۱۶۱)

هر څوک چه عقل دانائي هوش لري ۔۔۔ راز به په زړهٔ کښې همیش سرپوش لري
تنها به هم نهٔ کا د راز خبرے ۔۔۔ کهٔ هیڅوک نهٔ وي دیوال هم ګوش لري

(۱۶۲)

روږے شوے ترے صبا به عید وي ۔۔۔ هوس به کاندي هر چه سعید وي
سعید هغه دے چه یار تر څنګ لري ۔۔۔ شقي هغه دے چه ترے بعید وي

---

[1] مطلب حضرت علی کرم الله وجهه دے

(۱۶۳)

خبر د تللو د کوم آشنا راغے ... چه قاصد هسے د ګېره بیا راغے
په وار وار واړه یاران روان شول ... اوس به زۀ درومم چه وار زما راغے

(۱۶۴)

کۀ د عجم دی کۀ د عرب دی ... هم بے ادب دی چه زرد درب دی
سیل ے وکړی د کتابونو ... مقبول هغه دی چه په ادب دی

(۱۶۵)

ادب په تلۀ کښے دے ادب په ناست کښے دے ... هم په ولاړ کښے دے ادب په ملاست کښے دے
ادب په هیڅ کښے له سری نۀ درومی ... نور څۀ لا پریږده ادب په زغاست کښے دے

(۱۶۶)

کۀ په دولت کښے پښان د جم درومی ... لا ے ترجمه افزون حشم درومی
هیڅ به بنکاریږی ودانایانو ته ... چه له سریه په تلۀ درم درومی

(۱۶۷)

دمنی وخت وو، وے لیده ... یو څو بلبلے چه ژړیدلے
خوارے خسته وے، وے وسزائے ... چه بے ګلونو وُیایئیدلے

## (۱۶۸)

ځوک چه بې خدايا غير محبوب کا سندی
باطل اختيار کا واړه ناخوب کا سندی
غير به پرېږدی کله دزړهٔ فهم وُکا
په ضعف الطالب والمطلوب کا سندی

## (۱۶۹)

لږ ده له نيکو نيکی چه ځوک کېږی
نيکی له بدو، بدی له بنو کېږی
دامید تخم پرې باندې مهٔ کرهٔ
له بدې مزکې به ګل په ځو کېږی

## (۱۷۰)

يو دوه ورځې دنيا ورته ساتلی دی
چه پيروماته له خُلې ويستلی دی
مينه بې خدايا په هيچا مهٔ کوه
بې خدايا مينې واړه باطلی دی

## (۱۷۱)

چه دې دستر کو مشرم رقيب شی
خلاص له اغيارو هله جيب شی
د ګل لمن به ککره نهٔ کا
ګل ته که ځوک ډېر ځو اغزی قريب شی

---

دې آيت شريف ته اشاره ده - يا ايّها النّاسُ ضُرِبَ مَثَلٌ فاستمعُوا لَهٗ ط اِنّ الّذِيْنَ تَدعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ لَنْ يَّخلُقُوْا ذُبابًا ولو اجتمعُوا لَهٗ ط وَاِنْ يسلبْهُم الذُّبابُ شيئًا لا يستنقذوهُ مِنهُ ط ضَعُفَ الطّالِبُ وَالمطلوبُ ٥

(۱۷۲)

کهٔ د دنیا دی کهٔ د عقبیٰ دی — و ما راکړی نعمت مولا دی
شماره ئے څوک کولے نهٔ شم — چه لا یعدّ او لا یحصیٰ دی

(۱۷۳)

چه ښکته پورته زمونږ نفس دړومی — هر څهٔ ئے هیر دی په یاد د نس دړومی
حاصل د دین د چارے هیڅ نشته — حیف صد حیف اوقات عبث دړومی

(۱۷۴)

دا د وه خبرے زما په ځائے دی — پرے به پوهیږی چه روښن رائے دی
مقبول د خلق مردود د حق کیږی — مردود د خلقو مقبول د خدائے دی

(۱۷۵)

کهٔ دښمنان دی کهٔ ئے دوستان دی — واړه آفت د سړی د ځان دی
دښنی خپلوی چه له هیچا نهٔ کا — په دین دنیا کښے هغه کامران دی

(۱۷۶)

زما شوے وُچے د غمه لاړے — هم مے په زړهٔ کښے چړیکے لاړے
زهٔ دې په هسے احوال کښے پریښوم — تا راته شا کړه راځنی لاړے

(۱۷۷)

چه په دا لارے صبا بیګاه کړے ‏ ‏ ‏ ‏ ‏ ‏ ‏ تلنه، آهونه، فریاد ژړا کړے
کلی محلت به واړه خبر شی ‏ ‏ ‏ ‏ ‏ ‏ ‏ ما به خرابه ځان به رُسوا کړے

(۱۷۸)

که سره او سپین دے په کور کښے تل وی ‏ ‏ ‏ ‏ ‏ ‏ ‏ چه نهٔ دے علم نهٔ دے عمل وی
بُنیاد دے نشته آخر به خوار شی ‏ ‏ ‏ ‏ ‏ ‏ ‏ بخت به ترکومه ورسره مل وی

(۱۷۹)

ترهر څهٔ بد د کجئ خطر دے ‏ ‏ ‏ ‏ ‏ ‏ ‏ کجی به نهٔ کا چه دانشور دے
الف چه سم شی کجی دے نشته ‏ ‏ ‏ ‏ ‏ ‏ ‏ ځکه تر نورو حرفونو بَر دے

(۱۸۰)

وړو مینے مینه په مخ دیار شی ‏ ‏ ‏ ‏ ‏ ‏ ‏ بیا دے په طمع د سینه ګُفتار شی
فکر دے بیا د بوس وکنار شی ‏ ‏ ‏ ‏ ‏ ‏ ‏ په عشق کښے کله صبر و قرار شی

---

ل دا رُباعی د "ب" په چاپی نسخه کښے نهٔ وه. د
"خ" نه مو دلته راوړه۔

(۱۸۱)

ازبسچه تل مې جارې په خلهٔ ئې — یاد مې دلبره هسې په زړهٔ ئې
چه څوک له ورایه راته ښکاره شي — خوشحال خوشحال شم وایم چه ته ئې

(۱۸۲)

چه نوم ئې وُشي د محرومئ — خوب به په څوک د بې غمئ
په یوه ټکي محرم مجرم شي — ویره دِ کاندي د مجرمئ

(۱۸۳)

دوُښکو دې کې ستر کې نظر کوې — د خپلو تللو راته خبر کوې
چه د جوګیانو جامې دِ واغوستې — پوهېږم لرې ملک ته سفر کوې

(۱۸۴)

په ډېر عالم کښې کهٔ زړهٔ مې چوي — هم به مې وُښکې دسترګو نهٔ وي
زهٔ به تا ژاړم په هسې ځائې کښې — چه یو دِ غم وي دویم مې زړهٔ وي

(۱۸۵)

چه خوښي له ګله د ګیر لهٔ خاره دې — عشق له دوبینه بې اعتباره دې
نهٔ شکایت کړم له چا نهٔ شکر — درد مې له یاره درمان له یاره دې

(۱۸۶)

مست یم دُ عاکرم کۀ تۀ هم مست شې　　راسره کښېنې باده پرست شې
پیاله د میّو په لاس کښې واخلې　　د نام وننګ د ښیښې په شکست شې

(۱۸۷)

دیر خۀ مې وکړۀ دې دې آشنا شوې　　لکه زۀ ستا یم، تۀ هم زما شوې
یا تۀ بد خوئې ئې یا مې بد بخت دې　　لا تر غلیمه په هغه خوا شوې

(۱۸۸)

باد شاه چه عدل انصاف تمیز لرې　　خدائې به ئې د لې هورې عزیز لرې
چه د اخویونه وې څخه نۀ دی　　آخر به خوار شی کۀ نور هر څیز لرې

(۱۸۹)

چه هنرمند دې هغه حاسد لرې　　اغزی ګلونه رقیب شاهد لرې
کله به بنۀ ښځی د بومو زاغو　　باز چه مسکن د باد شاه ساعد لرې

(۱۹۰)

څوله پرهاره زوې بهیږی　　پرې مې صحت شې زخمونه بنۀ کیږی
همدردې نشته چه ورسره وژاړم　　له دیره غمونه مې حلق خوږیږی

## (۱۹۱)

هرچه د هجر مزری داړلی دی — که ساه پکښے وی په مړو شمارلی دی
لاړے مے د تللو راتللو بندے شوے — غائب د سترګو په خدائے سپارلی دی

## (۱۹۲)

څۀ شوکۀ سپین وی د دواړو سپیځے — دغوا دغوا دی د سپیځے د سپیځے
پاک څاڅکے بویه له پاکه ځایه — چه واخلی حمل ځنے سیپیځے

## (۱۹۳)

په درد مے نور څوک بیمار دردمند نۀ دی — بے ما په غم کښے زما غمژن نۀ دی
کۀ پلار کۀ زوئے دے کۀ ورور کۀ یار دے — تر ما نه هیڅوک په ما میین نۀ دی

## (۱۹۴)

زړۀ کۀ څو په کوړ اسبار وی — چه ورکړه نۀ کا په خرۀ زربار وی
چه پکښے نۀ وی اوبۀ د رحم — وُریځه نۀ وی یو تش غبار وی

## (۱۹۵)

اے چه په فکر د هیچا نۀ وی، کړے — زاړۀ به کله د خوارو نوی کړے
باران د رحم وربانده ووره — چه بیا له مړکے زرغونه سوی کړے

(۱۹۶)

زاهده! ولې راپورې خاندې؟ ‌ ‌ ‌ ‌ مخلوق پخپله کله څه کاندې
چه ئې را میل چا میل پیدا کړه ‌ ‌ ‌ ‌ هغهٔ پیدا کړهٔ گنهګاري سپاندې

(۱۹۷)

چه په ظاهر غوړ وي په باطن تور وي ‌ ‌ ‌ ‌ په ژبه خوږ وي په زړهٔ کښې شور وي
ورسره مهٔ کښېنه تا به تباه کا ‌ ‌ ‌ ‌ سپین زړه که سپین وي اصل ئې تور وي

(۱۹۸)

ګوره نن ګانده دوزګار په څو کیږي ‌ ‌ ‌ ‌ نیکي له بدو، بدي له ښو کیږي
هر چه بدخویه بدفعل کم ذات وي ‌ ‌ ‌ ‌ د خلقو مینه هم په هغو کیږي

(۱۹۹)

اې چه وئیل کړې ما ته "ښهٔ نهٔ ئې" ‌ ‌ ‌ ‌ ښه چه زهٔ بد یم، ښهٔ چه تهٔ ښهٔ ئې
زهٔ به هغه کړمه لکه چه زهٔ یم ‌ ‌ ‌ ‌ تهٔ هم هغه کړه لکه چه تهٔ ئې

(۲۰۰)

که اشتها د سړي د سیر وي ‌ ‌ ‌ ‌ خوراک ئې بویه چه کم نیم سیر وي
چه ډیر خوري کله هغه تر ډیره خوري ‌ ‌ ‌ ‌ هر څوک چه لږ خوري خوراک ئې ډیر وي

(۲۰۱)

خوبرُ ے په فقرِ معنوی حلق شی ‌ ‌ ‌ ‌ څکه اطلس ئے بدل په دلق شی
نظر د عامو پرے باندے بند وی ‌ ‌ ‌ ‌ بنده د مینے، بادشاه دخلق شی

(۲۰۲)

دعاشقانو دخلے یو یول دے ‌ ‌ ‌ ‌ چه خال وخط دبنائسته وُپسول دے
خدائے دِ دلګیرمهٔ کره چه دلګیرنهٔ شے ‌ ‌ ‌ ‌ د مخ ویښتهٔ دِ دمیاشتے شپول دے

(۲۰۳)

بوربه ترکومه زیبا صورت وی ‌ ‌ ‌ ‌ آخر به خاوړ وسره لت پت وی
کهٔ نن مات نهٔ شو صبائے کوره ‌ ‌ ‌ ‌ دخاوړین لوښی ښکاره صدت وی

(۲۰۴)

داسُنبل نهٔ دی ویښتهٔ مشکبار دی ‌ ‌ ‌ ‌ دالاله نهٔ دی کبنلی رُخسار دی
دانرګس نهٔ دی سترګے دکبنلیو دی ‌ ‌ ‌ ‌ چه خاوړے شوی پخپل وار دی

(۲۰۵)

کهٔ لب دِ لعل کړم، لعل خوشیرین نهٔ دی ‌ ‌ ‌ ‌ کهٔ غاښ دِ دُر کړم، دُر دغسے سپین نهٔ دی
کهٔ مخ دِ نمر کړم، دنمرکره وره نشته ‌ ‌ ‌ ‌ کهٔ دِ سنبل کړم زلفے مشکین نهٔ دی

(۲۰۶)

دباد فروشو په پوکو ډک د ـــ شي — کښيني دځان په ستائنه کړه شي
خود به ډم خوک ثنا صفت کا — که د هماے غوندے قانع په هډ شي

(۲۰۷)

په خوشحالئ کښے هوښيار غمژن وسي — چه صبا کيږي بويه چه نن وسي
درد ے دمه ويم که درد ے نهٔ ويم — چه د درد مندو په درد دردمن وسي

(۲۰۸)

لښکر په مثل لکه ښهٔ آس دے — سردار ئے سور دے چه سور ئے پاس دے
که هر څو جلد وي چست وچالاک وي — چه سور ئے تښتي د آس څهٔ لاس دے

(۲۰۹)

چه فرمائيلي د خدائے رسول صلی الله علیه وسلم دي — واړه په سترګو زما قبول دي
په بل څهٔ اړه، زموږ څهٔ کار دے — چه باندے کار لري ظلوم جهول دي

(۲۱۰)

د به خاطر ے له غير و سوړ کړے — هر دم ے خپلے بندګئ ته جوړ کړے
زړهٔ ے څهٔ لاس ے د واړه خالي دي — د قناعت په خزانو ے موړ کړے

(۲۱۱)

چه محبت کا له چا چه تل نهٔ وي | تر هغه هیڅوک کم عقل بل نهٔ وي
زما ځهٔ کار دے د خوشحالیو | خوښي هغه کا چه څوک ئے ځیل نهٔ وي

(۲۱۲)

د غم امان وُشه چه په چا زور شي | روښان جهان ئے په سترګو تور شي
په ورځ غم په یارانو ویشم | په شپه یوا ځے پما تنډور شي

(۲۱۳)

راشه که ګورے د عقل وُنړے | وُچ ئے له تندے د ننه سنړے
ګړ په دریاب شو او به ئے نهٔ څښے | ورځنے راغے هم هسے تږے

(۲۱۴)

هغه چه ستا دي چه ئے ساتل نهٔ کړے | ویره مے کیږي چه ئے د بل نهٔ کړے
که دا دِ خوئ دے، دا دِ خصلت دے | ځیل به پردي کړے، پردي به ځیل نهٔ کړے

(۲۱۵)

مخ چه په یار پیے د چا بد رنګ نهٔ وي | مخ ئے وُ نهٔ وینم چه هیڅ ئے ننګ نهٔ وي
بالنسبت په ډیرو ژړلو لوند کړم | چه ویښی له خوبه شم یار مے ترڅنګ نهٔ وي

## (۲۱۶)

مردان په سوال کښې د سائل نعم لري　　چه لَنْ لَمَّا وَ لَا وَمَا لَكُمْ لري
لکه په لَنْ کښې الف محذوف شو　　هسې به ورک شي که د یر نعم لري

## (۲۱۷)

چه دروغژن وي له حقه لرې وي　　هغو ته زهر رشتیا خبرې وي
مشک نجاست وي وکناسانو ته　　خاوړې خوږ وته خاوړې شکرې وي

## (۲۱۸)

چه یار مې لاړ شو په لویه لار ے　　را باندې راغلې ورځې دُشوار ے
لړمون مې سوزي روغه عالمه!　　څهٔ کړم چه نهٔ کړم نارې چیغارې

## (۲۱۹)

عشق مې خاطر دے ځکه پسند ے　　چه عشق کښې سور وُم بې عشقه پلې
په عشق بادشاه وُم پروا د چا نهٔ کړم　　بې عشقه کمرخم سکه نتلې

## (۲۲۰)

چه ډېر مې کړې باندې ګناه دے　　هر هر مقام مې په ګناه ګواه دے
تور مې د ږیرې وزره ته پریواتهٔ　　ږیره مې سپینه زړهٔ مې سیاه دے

## (۲۲۱)

په زړه مې هومره غمونه ډېر دي　　　　چه مې وختونه دخوشئ هېر دي
درد منه ! روغ ته له دردونو مه وایه　　　　وایه ګماته دا بانډې تېر دي

## (۲۲۲)

چه پېدا شوې ظلوم جهول دې　　　　هوس یې سود دې اندوه یې تول دې
چه عاقلان دې پرې به پوهېږي　　　　نا معقول نه دې ، دا قال معقول دې

## (۲۲۳)

که یې پر سعي کوشش کړې څه شي　　　　په وخت چه نه کړې بې وخته نه شي
که دې څوک په پېړۍ صلاح کا　　　　په ټا نک چه کښېوځي پورې هاله شي

## (۲۲۴)

صورت مې هر څوکه ډېر زبون دې　　　　که مې د مزکې دلاندې پیون دې
زه به په لور د آشنا دوان شم　　　　یون مې که هر څو په شوا خون دې

## (۲۲۵)

بهار خزان کړي ، خزان بهار کړي　　　　مالدار نیستګار کړي ، نیستګار مالدار کړي
دچا داړ وکړي ، دچا تیر وار کړي　　　　څه څه کارونه پروردګار کړي

(۲۲۶)

کۀ ورکړه خیر دے، چه هیر شی ګُل شی کۀ هر څوک وی چه یاد شی کُل شی
چه باغوان تخم په خاوره وپټ کا پیدا ترے هاله بنا ګُسته ګُل شی

(۲۲۷)

چه ګُل همت ئے خوراک لباس دے په تحقیق هغه ارذل الناس دے
شرف په خوی دے په دیانت دے کۀ څوک شریف دے یا څوک کناس دے

(۲۲۸)

دا ګمان مۀ کړه چه ستا دی تل به وی دبل دی ستا شی، ستا دی دبل به وی
د زړه وکالو سری مرګ پرینښول تۀ که ډیر پائے نهایت سل به وی

(۲۲۹)

لکه عامل شول تر خاورو لاندے عمل هم ورک شو په مزکه باندے
اوس په خبرو پروُل ورُول دی دا بیت بازئ دی عالم ئے کاندے

(۲۳۰)

بیګاه نزدے شو دغرونو سیورے په سم راپریوتے له پیښے تورے
ډیر ډیر ویریږم یاره نزدے شه چه څُیں دکورم هم ے څُیں کورے

## (۲۳۱)

کهٔ په حکمت کښې ترهٔ چا پاس وی — اصیل نجیب وی چه خالی لاس وی
پروت به په خاورو لکه الماس وی — سپک په نظر د عوام الناس وی

## (۲۳۲)

داچه ترفهمه زما عزیز دی — سنهٔ بد تمیز نهٔ کا بد بے تمیز دی
اے تهٔ هغوته چه څوک د خدائے دی — چه په شیر نهٔ ارزی کم تر پشیز دی

## (۲۳۳)

اے چه لمانه تل په ژړا غواړے — خود به ئے بیا موے کهٔ تل دا شانں ژاړے
له مصرو واخله د سر حرفونه — هغه جواب دے چه باندے تهٔ ویاړے

## (۲۳۴)

تهٔ چه دا هسے لما کنار کړے
کښینې هر چا ته، لمانه زار کړے
یا دروغژن وے منزل دِ لنډ وو
لا دِ نیت بد شو، بد یو به یار کړے

(۲۳۵)

داچه ښکارېږي تا ته په سخ کښې ثوثو بنا وے لرے په مخ کښې
په کاڼي وکا اثر خبره تاثیر هیڅ نهٔ کا په ساړهٔ سمخ کښې

(۲۳۶)

تل ے ناستے وو له خلقه ګوښے
خپل پردي واړه راځني تښے
دم ے همدم وو کتاب محرم وو
سر ے به تل وو په زانو یښے

* * *

# ترکیب بند

سخې دهغه زړهٔ چه کا اشغال د محمدؐ
بخت دهغه خلے چه لزی قال د محمدؐ

بے له یوه خدایا چه کمال دے ددهٔ علم ‏ ‏ نورچا ته ښکاره نهٔ دے کمال د محمدؐ
وُخوت موسیٰؑ په طور "فاخلع نعلیک" حکم پرے شو ‏ ‏ عرش هم مفخر شو په نعال د محمدؐ
سر به ئے د فخر تر اووهٔ اسمانه تیر شی ‏ ‏ هر چه له اخلاصه شی پائمال د محمدؐ
خدائے چه څهٔ دخدائے دی، هسکی واړه ددهٔ وو ‏ ‏ څهٔ شو په ظاهر کهٔ نهٔ وو مال د محمدؐ
نورنبیانؑ به واړه دزړے په دود څرګند شی ‏ ‏ وُبریښی چه نمر غوندے جمال د محمدؐ
خال چه په مخ کین دی یو په سله حسن زیات شی ‏ ‏ څکه خال دحورو شو بلال د محمدؐ
په ورځ دقیامت چه خلائق واړه حاضر وی ‏ ‏ هاله به ښکاره شی جاه جلال د محمدؐ
واڼی چه که حُب د دخپل خدائے په یوځی په زړهٔ کښے ‏ ‏ حُب به محمد کوه په آل د محمدؐ

خدائے دد هٔ له رویه تمامی خلق پیدا کړهٔ
دهٔ هم بے له خدایا هسکی واړه ترشا کړه

---

ؔ فَلَمَّا اَتٰهَا نُوْدِیَ یٰمُوسٰی اِنِّیٓ اَنَا رَبُّکَ فَاخْلَعْ نَعلَیکَ اِنَّکَ
بِالْوَادِ الْمُقَدَّسِ طُوًی ہ

خدائے دِ صفت کړے په قرآن دابوبکر رض
فرض ده ثنا په انس و جان دابوبکر رض

بے له دے چه مال او ځان ئے ځار تر محمد[۱] کړے ــ نهٔ وو په خاطر کښے بل ارمان دابوبکر رض
بونیں به ئے دخُلے دور یتو غوښتو همیش تلنه ــ تل دعشق په اور وو زړهٔ بریان دابوبکر رض
استاد دانبیاءُ شو عالم ددهٔ له رُخه ــ ادب ئے درهمیش په دل وجان دابوبکر رض
ځکه انبیاءُ ارزوی ددهٔ امت کړه ــ چه ځیں ئے کړ په لوح محفوظ شان دابوبکر رض
تل ئے په دوستانو باندے رحم د رحیم وی ــ یا دئے وی په لعن دښمنان دابوبکر رض
نور عالم مشتاق وی دجنت، جنت دهغو ــ هر چه دی له صدقه مشتاقان دابوبکر رض
فقر ئے موندلے وو دپاک نبی له فقره ــ ځکه پادشاهان شول کډ ایان دابوبکر رض
خلاصه ئے په رُوی د محمد لسانه مهٔ کړه ــ لاس مے لګولی په دامان دابوبکر رض

هیڅ حاجت ئے نهٔ غوښت دهٔ په خدائے راوړو تصدیق
ځکه سر دفتر داولیاءَ شو صدیق رض

پس چه له صدیق رض په صفت ددُره دار شهٔ ــ هغه مسلمان سرے سُنیانو سره شمار شهٔ
حُب ئے په سړیو په پیریو باندے فرض دے ــ هرڅوک چه ئے حُب نهٔ لری دے هُورے خوار شهٔ
دین د اسلام پیا مُوندهٔ قوت ددهٔ له دینه ــ دا رنګه قُوت به په قوت دکرد کار شهٔ
سخت په کافرانو و و تر زړهٔ دکافرانو ــ نازل په باب ئے ځکه "اشدّاءُ علی الکفار" شهٔ

---

[۱] محمّدٌ رّسُولُ اللّٰهِ ط والّذِیْنَ مَعَهٗ اشدّاءُ عَلَی الکُفّارِ رُحَمَآءُ بینهُمْ تریٰهُمْ رُکّعًا سُجّدًا یّبْتَغُوْنَ فَضْلًا مِنَ اللّٰهِ ورضوانًا سیماهم فی وَجُوهِهِمْ مِن اثرِ السُّجُود ط

له غشيه ئې له ورايه لکه سيل د کار غانو — د ښکر د کافرانو په ليدلو تار په تار شهٔ
هسې رنګ آيت پرې جبرائيل له خدايا راوړه — هر چه به په وخت د مشورت ددهٔ ګفتار شهٔ
کله چه به دې د خدائې د پاره په غضب شو — شيطان به په کروهونو له هغه ځايه فرار شهٔ
صِدق د صادق کهٔ له صديقهٔ محمّ ښکاره کړ — عدل د عادل ددهٔ په عدل کښې اظهار شهٔ
عدل چه ددهٔ لکه آفتاب په جهان وُخوت — پټ په سوراخونو کښې ظالم شب پرک وار شهٔ

پاک نبيّ وئيل چه پس لما کهٔ پيغمبر وې
روح دهٔ چه هغه هم د خطاب زويه عمرؓ وې

فرض لکه په خلق بانديې تفضيل دې د شيخين — هسې رنګ واجب دې محبت د ختنين
دوه ځله چه نُور د نبوت بانديې تابان شهٔ — ځکه مخاطب شهٔ په خطاب د ذِی النورين
بحر د سخا وو، غر د حِلم، کان د شرم — ايښئې قدم وو د همت په فرقدين
تخمير ئې د طينت وو د جنت په شهدو شوې — تلخ ئې چا ته نهٔ وتل هرګز له شفتين
څير به ئې له شرمه وچا ته کښته نهٔ شو — تل به ئې پخپل کنار نظر وو د عينين
عمر ئې تمام په خوشنودئ له خلقو تير شهٔ — کړ به ئې په هر ساعت طاعت د ثقلين
خدائې چه "رُحَمَاءُ بَينهُمْ" وَدهٔ ته وُوې — ځکه ئې په خوئ د رحمت بيا موند زيب و زين
يو ئې له دُنيا نه واخست بل ئې له عقبیٰ نه — بيا ئې موند وصال د خپل مطلوب په قد مين
لار کهٔ له دُنيا نه په سرو وينو رنګوې — ګرځي په ګلزار کښې د جنت په شِين شِين

جمع د ضدين کهٔ هر چا ته وی محال
دين او دنيا جمع کړه وَدهٔ ته ذوالجلال

رفض نهٔ دے خلقو محبت د مُرتضیٰؓ — خدائے دِ وَما راکړه په حُرمت د مُرتضیٰؓ
لا په ترده مینه په بوبکرؓ په عمرؓ کا — وی ئے چه په زړهٔ کښے موَدت د مُرتضیٰؓ
هرچه ئے په زړهٔ کښے بغض پروت وی د شیخینو — تل وی په هغو باندِ لعنت د مُرتضیٰؓ
نشته هسے رنګه بل یو ځوان سکه علیؓ — دا رنګه خدائے کړے دے صفت د مُرتضیٰؓ
خدائے چه پرے خطاب اسدالله له لُطفه کیښو — تم په دا کتاب شو شجاعت د مُرتضیٰؓ
ځان ئے دهجرت په شپه ایثار ترمحمدؐ کړ — خدائے ستایهٔ فرښتو ته فتوحات د مُرتضیٰؓ
کوټ ئے دخیبر په تنها ځان کړو دړے وړے — زیات دے تر بیانه زور قوت د مُرتضیٰؓ
نبیؐ[۱] دعلم ښهر دے، دے ور دهغه ښهر — ګوره چرته لاړ شو فضیلت د مُرتضیٰؓ

وُ بخښه خپل خدائے عبدالقادر له دېره فضله
په رُوئ د مرتضیٰؓ په ذریت د مُرتضیٰؓ
ستوری دهدائی دی درسولؐ واړه اصحابؓ
راضی دے خدائے له دیونه رحمت ئے په احباب

---

۱؎ اَنَا مَدِیْنَةُ الْعِلْمِ وَعَلِیٌّ بَابُهَا

# ترجیع بند

دریغه دریغه دډُنیا خونه تالا کړے
په ژوندونی ځان بدتر ترخاوړو ولا کړے
دغزځه غوندے له خلق تښتید لے
ځان له وارو آشنایانو ناآشنا کړے
چه په مرګ سره له ځانه جدا کیږی
هغه واړه لا تر مرګ پخوا جدا کړے
یو ساعت مهٔ وے فارغ دځان له غمه
په هوس ے دهمه خلقو خندا کړے
لیونے شوے چه چانهٔ پریښووے وَدَرته
ودانی دجهان واړه پس شا کړے
مخ په بیدے بیدیا وُنیوے ژړلے
دصحرا دوُنو پاڼږے پټ خوړلے

چه آخر دِله فانی جهانه تلهٔ شته
څهٔ پکار کهٔ دِ په کوړ کښے پیِڼ اوسرهٔ شته
کهٔ په تخت دپاسه کښینے بادشاهی کړے
عاقبت دِ بیاله تخته پریواتهٔ شته
که لښکر دِ ترحساب تریشماره ستیر شی
کمان مهٔ کړه چه دِ بے عمله ملهٔ شته
جمادات دجدائیے له غمه ژاړی
ستالا هیڅکله نرمی دخاطر نهٔ شته
ورځ په ورځ شیرین یاران درځنی درومی
وُچوے دِله! چه لاستاخواب وخواړهٔ شته
مخ په بیدے بیدیا وُنیوے ژړلے
دصحرادونو پاڼږے پټ خوړلے

که هر څووی بنائسته په رنګ رنګینه
لاله رُویه، سُنبل مویه، تن سیمینه
تریښهٔ مخ پورے دِ نُور دسپوږمئ هیڅ شی
په سپوږمئ چه پلو واخلے وُدرِینه

لطافت ئے زیات دګل تر لطافت دے — په عالم ئے دخوبئ خبرے شینه
کښلے مخ به ئے دګور خاوړے بد رنګ کا — نازک تن به ئے دګور چنجي وخوري نه
چه دا هسے احوال دے په دا دُنیا کښے — په خپل حُسن به څوک څهٔ دِماغ کوینه

مخ په بیدے بیدیا ونیوے ژړے
دصحرا دوُنو پاڼے پټ خوړے

کشکے نهٔ په دا جهان راغلے نهٔ وے — چه په داغ دبیلتانهٔ داغلے نهٔ وے
یا مے مرګ دهلکوالی په ساعت وے — چه مے خپل پردی څوک پیژندلے نهٔ وے
یا زوولے ړُون په سترګو وے له ځایه — چه مے مخ دهیڅ آشنا لیدلے نهٔ وے
یا خبر په بنهٔ بد مهٔ وے لیونے وے — چه دروغو په شماره شمیرلے نهٔ وے
یا هوښیار شوے تل دځان فکر کولے — په فکرونو دجهان نیولے نهٔ وے

مخ په بیدے بیدیا وُنیوے ژړے
دصحرا دَونو پاڼے پټ خوړے

په زړګی مے دبیلتون لمبے بلیږی — ځکه وُښکے مے له سترګو راتلیږی
دا آسمان چه لکه ژرنده هسے ګرځی — ددانو ځائے یاران پکښے دلیږی
دُنیا په سرائے کښے ځائے دمقام نشته — کاروانونه په هر دَم حُسنی چلیږی
غافلان به په دُنیا کښے خوشحالی کا — عاقلان به همیشه کښینتی نوُ لیږی
هرګز نوړ کاروونه مهٔ کړه په دُنیا کښے — چه دا هسے رنګ شیرین یاران بیلیږی

مخ په بیدے بیدیا ونیوے ژړے
دصحرا دوُنو پاڼے پټ خوړے

په ارمان به یک تنها وُوځے له کوره — خپل پردی به درسره دړ ومی تر کوره
په لحد کښے به دِ واچوی یوا ځے — غوړځوی به درته خاورے لور له لوره

تا به پرین دی دوئ به وجار وځي کور ته   په بیلتون به ئې نارې وهې په زوره
کېږ نکیں به په هیبت د دلره راشي   چه ئې دواړه سترګې ډکې وي له اوره
نور څه مهٔ کړه په ژوندون عبدالقادره   چه د احال دِ اے دزړهٔ په سترګو ګوره

مخ په بیدے بیدیا وُنیوے ژړے
د صحرا د وُنو پاڼے پټ خوړے

چه له دَره دښمنن ورتلے بل در ته   سکه سپے په کاڼو لوټو ئې شړے
د جهان دخوبډو هیڅ غرضي مهٔ وے   ګُل ترخهٔ مے دخوبډو غونډِ نغرے
دحرص دسپي غابني مات په قناعت شوے   په زنځیر مے بیا دصبر وُتړے
عاقبت به په ارمان ورځنی درومي   که مننګ وی په سپیرو ایرو لړے
په ما نوم دبادشاهئ مهٔ وے پورے   خوشامد مے مهٔ کړے چا تل ئې ربړے
هرکاره به بهادرشاه چیرے خبر کا   حال عبدالقادره! مهٔ وایه سپیړے

مخ په بیدے بیدیا وُنیوے ژړے
د صحرا د وُنو پاڼے پټ خوړے

---

# مخمس[١]

رنړا ورځ په ما بې تا ده توره تمه | راته یوشو د غمونو غرونه ، سمه
وښکې وینې تویوم د زړه له غمه | یو زمان مې خلاصې نه وی له المه
زه دِ ویښمه دخوږ زړونو مرهمه

فراق دې را باندې زور شو نه سهېږم | شپه او ورځ لکه باران هسې ورېږم
تود لوګې مې له خولې په زړه ورتېږم | په راتلو دِ لکه ګل شګفته کېږم
بر بر راشه آشنا صبا قدمه

چه خوراک یې همېشه خون دجګر وی | تل فریاد ، تل په ژړا په نا روسر وی
تر مجنون او تر فرهاد یې حال بد تر وی | د مهجور تر زندګئ یې مرګ بهتر وی
که سینه یې ستې کېږی نه ده کهرمه

که هر څو د خوښئ دکې پیالې شومی | عاقبت به یې له غمه وچ شی کومی
له دُنیا به هوښیار څرنګ خوښی مومی | چه دسترګو په حُمبل له سری درومی
دل بستګی پرې پورې مه کوه آدمه

د دُنیا د مینې سخت زبون بنیا دے | په دُنیا مینُن بنده دے ، نه آزاد دے
د دُنیا دولت په مثل لکه باد دے | په دُنیا چه یې زړه بنا د هغه نابنا دے
کله مخ کا کله څټ کاندی له همه

ستا مئین به همیش خوار خسته په زړه وی ‌‌‌‌ ‌ ‌ تل په غم تل په آشوب کښې وی خوږ وی

خوار خسته حیران پریشان به لکه زه وی ‌ ‌ ترمخه به بل نادان په جهان نه وی

چه به تا وته لری د وفا طمعه

څو عاشق د یار په مینه کښې خوارېږی ‌ ‌ خپل پردی ورځنې عار کا وېزارېږی

لا ئې عشق و معشوقې ته اظهارېږی ‌ ‌ په خپل یار چه ستم نه کړی آزارېږی

چرې نه وی لاس کوتاه کړې له ستمه

که هر څو په جهان ډېر دی نګارې ‌ ‌ آهو چشمې، مو کمرې، پریوارې

مه جبینې، تن سمینې، ګل رخسارې ‌ ‌ مخ نسرینې، سرو قدې، خوش رفتارې

د بنائست وینا په تا باندې شوه تمه

شرمنده د تر سنه مخه ګلزار وینم ‌ ‌ چه بې ستا له مخه ګل د بهار وینم

د هر ګل پاڼې په زړه لکه خار وینم ‌ ‌ د زلفینو تر حلقو د عذار وینم

که سمن دې ستا په زلفو کښې صنمه

راشه څه وائې چه ویره د ځان مه کړه ‌ ‌ د خپل یار په محبت کښې نقصان مه کړه

هیڅ و ما ته له دې بابه بیان مه کړه ‌ ‌ که مې سر ځی که مې مال ځی ګمان مه کړه

چه به مینه شی زما له یاره کمه

کۀ له عشقه شې سنسار عبدالقادره ‌ ‌ د منصور غوندې په دار عبدالقادره

په نارو سوزې په نار عبدالقادره ‌ ‌ مه کړه بې عشقه بل کار عبدالقادره

د عشق چار په لاس کښې ونیسه محکمه

# مخمسّ ۲

دا زما خاطر زبون دے ۔ دے له عقلہ ډیر بیرون دے
په دنیا پسے مجنون دے ۔ څهٔ اُمید په دا ژوندون دے
نن دیدن کہ ساندہ بیلتون دے

خبر شه د نوحؑ له حاله ۔ چه ئے عمر وو زر کاله
نهٔ شو خلاص د مرګ له جاله ۔ په ارمان لاړ لهٔ عیاله
نن دیدن کاسندہ بیلتون دے

کهٔ څوک سیل د ګلزار کا ۔ ننداره د نوبهار کا
کهٔ پرے غوږ د زړهٔ بیدار کا ۔ عندلیب ھسے چغار کا
نن دیدن کہ ساندہ بیلتون دے

په پسرلی ګلونه واشی ۔ په څو رنګ ئے تماشا شی
چه خزان وریاندے راشی ۔ تورے خاورے د صحرا شی
نن دیدن کہ ساندہ بیلتون دے

کهٔ په حُسن لکه نمر شی ۔ تر یوسف بنائسته تر شی
خو چه قبر لره ورشی ۔ تورے خاورے ئے پسر شی
نن دیدن کاسندہ بیلتون دے

کهٔ د مرګ خواری تر زړهٔ کړے | کور به وران د دُنيا تهٔ کړے
خوشحالی به نوره نهٔ کړے | تل به دا ذکر په خلهٔ کړے
نن ديدن کهانده بيلتون دے

چه جدا ياران تر زړهٔ کړم | په ژړلو ليمهٔ سرهٔ کړم
څو ژوندون په دنيا زړهٔ کړم | آشنائی به نوره نهٔ کړم
نن ديدن کهانده بيلتون دے

که هر څو نازک بدن شی | لکه ګل هسے په تن شی
چه لحد د دهٔ وطن شی | د چمچيو په خوردن شی
نن ديدن کهانده بيلتون دے

کهٔ څوک جوړ لوړے عمارت کا | تر کسریٰ نے لا زينت کا
په مثال نے د جنّت کا | د مرګ سيند به نے لت پت کا
نن ديدن کهانده بيلتون دے

اے چه خان او ملک نوے | په دماغ په کبر ډړوے
تل به دا خوښی نهٔ موے | بند به شے د مرګ په لوے
نن ديدن کهانده بيلتون دے

په دُنيا کښے کهٔ قارون شی | لا تر دهٔ نه هم افزون شی
چه و قبر ته نے يون شی | خالی لاس به ترے بيرون شی
نن ديدن کهانده بيلتون دے

کهٔ ته تو ے کړے نګارے | بنائسته پری رُخسارے
پس له تا به شی د وی خوارے | يا به شی د نورو يارے
نن ديدن کهانده بيلتون دے

که سل زره د فرزندان شی لا به دوی په مرګ طوفان شی
ستا خاطر به پرے بریان شی لا به پاتو یتیمان شی
نن دیدن کهانده بیلتون دے

اے زما ناپوهه دِله نصیحت له مرو اخله
څو دُنیا ئے تولو له لا رل دوی دائے پریښوله
نن دیدن کهانده بیلتون دے

که دوراندے ئے هاتیان ځي پسے دوئ په تخت روان ځي
لور په لور ئے سپاهیان ځي خو به ګوینے له جهان ځي
نن دیدن کهانده بیلتون دے

که بادشاه د درست جهان شی سلطنت ئے د سلیمانؑ شی
چه په حکم ئے دیوان شی ترے جُدا به په ارمان شی
نن دیدن کهانده بیلتون دے

که هر څو ئے دولت ډیر شی د حساب تر شماره تیر شی
چه د مرګ استاځے ویر شی پرے به زهر یا ګندیر شی
نن دیدن کهانده بیلتون دے

هرچه نغوته د خپل نس کا د دُنیا هوا هوس کا
بیهوده چارے عبث کا فریاد هسے رنګ جرس کا
نن دیدن کهانده بیلتون دے

چه به خوا ناخوا ترے ځینه نهٔ دِ کا په دُنیا مینه
ځان دِ تلونے وُکړینه د قیامت په غم دِ شینه
نن دیدن کهانده بیلتون دے

شپه او ورځ د عبادت کا　　ترک دِ واړه معصیت کا
ځان دِ جوړ په شریعت کا　　تل دِ زړهٔ ته نصیحت کا
تن دیدن کهانده بیلتون دے

اے خوب وړیه زړهٔ بیدار شه　　دخپل ځان په غم گرفتار شه
له گناهه توبه کار شه　　تل په ذکر د قهّار شه
تن دیدن کهانده بیلتون دے

ځله مهٔ تار په تا دیږیٔ　　یاران یو تر بل ځاریږیٔ
هیچرے مهٔ ویزاریږیٔ　　ویزار څهٔ مهٔ آزاریږیٔ
تن دیدن کهانده بیلتون دے

چه تهٔ واے چا ته یاره　　نور دُنیا کا تر دهٔ ځاره
سر شبنده دیار دیاره　　زړهٔ ساتل غنیمت شماره
تن دیدن کهانده بیلتون دے

سترگے وُخورے دواړه تورے　　چه باقی په فانی پلورے
په دُنیا پسے تل بنورے　　دے دُنیا وته نهٔ گورے
تن دیدن کهانده بیلتون دے

اے چه ناست ئے په تخت باندے　　په شاځے په قهقهه خاندے
ځائے دِ دے تر خاوړو لاندے　　مرگ تل داد نړ ورو کاندے
تن دیدن کهانده بیلتون دے

چه جُدا له محرم شو　　یو په سله ے الم شو
زما زړهٔ جونگړے دغم شو　　چه قائل په دا قلم شو
تن دیدن کهانده بیلتون دے

اے زما دِلبره راشه — ما نږے مۀ کوه په خلاشه
وُموسیږه په خندا شه — خو په خوا راسره بیا شه
نن دیدن کهانده بیلتون دے

څۀ مے وُښکے لهر لهر — وران مے شو دخاطر ښهر
ناست په غاړه وُم دنهر — دا آوازئے کړو په جهر
نن دیدن کهانده بیلتون دے

څوک چه غوږ په دا بیان کا — څۀ اُمید به په جهان کا
کور به دے دُنیا وران کا — دا ویل په هر زمان کا
نن دیدن کهانده بیلتون دے

کۀ په حسن سکه نمر شي — تر یوسفؑ بنائسته تر شي
خو چه قبر لره ورشي — تورے خاورےئے په سر شي
نن دیدن کهانده بیلتون دے

زۀ عبدالقادر نۀ بنائیم — چه خپل شعر چاته نمائیم
خو مئین په دا وینا یم — هر زمان ئے څکه ستائیم
نن دیدن کهانده بیلتون دے

—— . . ——

# مُربع

## (د خوشحال خان خټک په ستائنه او دُعا کښې)

خدائے دِې تل لکه خپل نوم لره خوشحاله — خوشحالي ئې په نصیب کړه لایزاله
خردمند، نیکوسیرت، نیکو مقاله — خود پوهېږې، هیڅ پښتون ئې نۀ وو سیاله

ورکول ئې بې ستله د حاتم وو — ورته یو سفال و سنګ دینار دِرم وو
وائي پښتان د هغه چا چه په دۀ کرم وو — ورځ و شپه به ئې کاوۀ باندے ازغاله

شرم ننګ لکه د دۀ وو د چا نۀ وو — شجاعت لکه رستم هسې د دۀ وو
شور و شر ئې تل د سینې پروت په زړۀ وو — شان د دۀ دے در ښکاره د دۀ تر قاله

حال د هر سړي ښکاره دے تر مقاله — حل د هر مشکل کاوۀ شي له امواله
حد د چاچه ئې ځواب کاوۀ له قاله — حقیقت په مجال نقل دے محاله

خار د سترګو د دُښمن پخپل بهار وو — خاموشي حِلم ئې ډېر درلۀ بُردبار وو
خپل پردي له دۀ همه شکرګزار وو — خټک درست د دۀ په دور وو نهاله

اندیښنه ئې وه هرګوره ډیره لویه　　　اجنبي به ئې کم نهٔ ګاڼهٔ تر زویه
افغان دهٔ غونډې چه وُزیږي بل بویه　　　آزاده وو هیڅ ئې نهٔ وهٔ مال منا له

نوم ئې لاړ وو تر دکن تر قند هاره　　　نهٔ وو بل هسې نامي له زمیندارہ
نیم دِرم ئې هم کورنهٔ ساتهٔ له عاره　　　نور ئې هیڅ نهٔ وو ددهٔ، بې توره واله

خیل خانه ورځنې واړه وه خوشنود ه　　　خوش خرم وو همګي ددهٔ له جُوده
خاص و عام ووتل سُودمند ددهٔ له سُوده　　　خوش کلام وو، خوش معاش وو، خوش خصاله

تواضع ئې دهرچا کړه بې مقدار　　　تر اندازه کم زیات نهٔ وو ددهٔ کار
تل به دهٔ کړ کبر ژن په کبر خوار　　　تکبر په کبر ژنو دې بِملاله

کلام ډیر ددهٔ شیرین وو تربا ته　　　کم ددهٔ تر خُلې ترخهٔ وتل وچا ته
کار ئې داوو، تر حیاته تر مماته　　　کرم وُکړه په دهٔ باندې ذوالجلاله

اور دننه دعاشق په زړهٔ بلیږي　　　او رنګین شعر لمبې ځنې بښکاریږي
ارمان دادې چه څوک کم په دا پوهیږي　　　اوس نو رځهٔ وایم د هسې حال احواله

لام او بې ئې ددلبرو دي ستائیلي　　　لعل او دُر ئې دګفتار په تار پئیلي
لږ و ډیره ما ددهٔ له حال وئیلي　　　لله څوک چه دیار مخ کا نمر مثاله

# قطعه

زۀ چه هسے په خپل ځان باندے مئین یم
دجانان دِ په جانان باندے مئین یم
دخزان میوه بهار ، دبهار دے
تر بهاره په خزان باندے مئین یم

مۀ دِ وینم لباسی په سترګو تورو
زۀ په تا باندے مئین یم ته په نورو
هیڅ حرمت ئے لکه حق وو په ځائے نۀ کړ
میلمه شوے وو یوسف په کوړ دکوړو
په بنۀ خوئ په څۀ پرواه کرم له بد خویو
قیمت لړ نۀ شو دڈر په اوبو شورو

دمجنون په مخه سپے په کوڅه راغے
چه په رنځ دیمن والی مبتلا وو
هغه دم ئے تر پښو پریوت مخ ئے کښل کړ
چه په کوڅے کښے ئے لیدلے دلیلا وو

شیخ سعدیؒ قدوهٔ اهلِ یقین
چون منور گشت از وزیرِ زمین
از خرد جستم حساب رحلتش
در جوابم گفت "شیخ مومنین"
۱۱۰۶ھ

په هر کاله کښې د مرګ ماتم دے
وبا نیولے اکثر عالم دے
بنهٔ بنهٔ یاران ئے جُمله جدا کړ
تاریخ ئے راغلو چه کال د غم دے
۱۰۹۵ھ

بنده هغه بهتر دے چه له خپلو تقصیرونو
عذر ونه په درګاه د خپل څښتن همیش راوړینه
کله څوک توانیږی لکه حق ئے د صفت دے
نبیؐ دے که ولی دے چه ثنا ادا کوینه

په ظاهر د آدم زوئے په معنی پلار وو د آدم
ظهور ئے په آخر په حقیقت کښې مقدم
محمد رسول الله چه تل لمانځه دهٔ هر دَم
صَلَّی اللّٰه تعالیٰ عَلَی النّبی وَسَلَّم

---

ئے د شیخ سعدی لاهوریؒ خلیفه حضرت بنوریؒ د وفات تاریخ

دامت دیوال دِغم د پرتل سنهٔ کا
چه دِ تا غوندے رسول ئے پشتیبان وی
دهغوی بیړئ به څرنګه ډوبیږی
چه خود نوح نبی الله ئے کشتیبان وی

اے دسحرچرګه! عشق حاصل کړه له پتنګه
وسوزی په اورکښے هیڅ آوز نهٔ کا له ننګه
هرچه لاف دعشق کا یا له عشقه ګفتګو ئے کا
تش دعوے کاندی په سالوس ئے جامه رنګه
ګفت په شریعت دے سکوت په حقیقت کښے
کله وئیل کاندی مقرب دشاه له څنګه

نمر سپوږمئ یا د وُرېځے
چه تل بنکته پورته بنوری
همګی ستا په خدمت دی
شپه و ورځ دِ تا غم خوری
رزق روزی درته موجود کا
درحمت باران ئے وُ ووری
دا ئے ستا دپاره هست کړهٔ
تهٔ غافل دحق له لوُری
چه په دا نعمت راندهٔ شی
په قیامت به وی مخ توری

د آشنا صفت به څو پوښتې له ما نه
څهٔ به وائی بے دِلان له بے نشانه
عاشقان په تیغ وژلی معشوقے دی
له وژلیو آواز کله خیژی جانه

خوشحال خان د شهباز خان وو، شهباز خان د یحیٰی خان
یحیٰی خان د اکوړی وو، سرائے اول کړ دهٔ وران
سخاوت د دوارو خوئ وو، شجاعت ئے لا ترے تیر
د خټکو سرداران وو خدائے پرے رحم وکړه ډیر



# مثنوی

چه گزرے هر دَم عمر لکه باد کا — په دُنیا کښے به عاقل کله زړۀ بناد کا

دوۀ شپیته کاله دِ لاړ عمر په لهو — عبادت دِ په عادت نیکی په سهو

هر گناه ورځه شوے په اخلاص وی — چه دا خوئی لری بے فضل کله خلاص وی

نجل ثوک چه تش وښل کاندی کار نۀ کا — وقت د کوچ راشی دے زیرمه د بار نۀ کا

خوب کهٔ خوبن دے د سحر ابن السبیل — لاچار پریږدی چه وقت راشی د رحیل

هر ثوک راغلهٔ سازے نوے عمارت کړ — د مرګ سیند ے عمارت واره لټ پټ کړ

دوئی ته هم کړه داچار نفس و شیطان غوږ — هیڅ یوهٔ دا عمارت نۀ کړ تر سره

بے وفا سره یاری مۀ کړه هوښیار ده — محبت وته نۀ بناقی دا مکاره

چه بنهٔ بد ته ضرور تلهٔ دی له جهانه — مر د هغه چه د بنو نوم یوسی له ځانه

د سړی د خوشحالئ اصل شکم دے — خو چه د روئی په وار وار هوړ بے غم دے

کهٔ د تللو لارے بند کا چه نۀ دړ وی — هغه دَم به د اَجل پیاله واشومی

کهٔ روان شی چه هرګز نۀ شی تړ ے — هم به وُمری له اجناسه درست لرے

ثلور طبع مخالفے دی سر کښے — یو ثو ورځے روزګار کا جُمله خوښے

کهٔ یوهٔ شی په ثلور و کښے غالبه — هغه دم شیرین ځان وو زی له قالبه

ثلور واړه ضد به څو وی سره جمع — چه روښنه به وی ستا د حیات شمع

ځکه هر ثوک چه عارف دانا په زړهٔ وی — تعلق ے په ترونون باندے هیڅ نۀ وی

وړاندې استوی دکورتوښه چه پوه وی
بې توښې مسافر لاندې تراندوه وی

کله تا هم مورو پلار په خیرات یاد کړه
په دُعا سره دِ زړونه ددوئ ښاد کړه؟

چه دځیلو فرزندانو طمع داکړې
بویه داچه دځان غم تر تلو پخواکړې

عمر واوړے په معنیٰ د نمر دهاړ دے
لږ وتا ته پاتو شوے دے ډیر لاړ دے

خالی لاس چه روان شوے وی بازار ته
څهٔ به راوړی چه راځی وکورته بیارته

چه دځیل پتی ئې وخوړهٔ خوسیدونه
کرځوی هغه ځولئ په درسندو نه

# مثنوی

هومره نهٔ دے سنقبت دشیخ رحمکارؒ
چه اداشی یا په کښل یا په گفتار

دنبی صاحب په فقر معزّز وو
دځیل عصر په فقرائ کښې اعز وو

کهٔ اقوال کهٔ ئے افعال کهٔ ئے احوال وو
دسنت په موافق ددهٔ کل چال وو

دډک سیند غوندې بے شوروشر خاموش وو
نهٔ سیلاب غوندې پُرجوش پُرخروش وو

په قضٰی دحق راضی ورته تسلیم وو
هرګور ډیر متحمل وو ډیر حلیم وو

له هستئ ځیلې فانی په حق باقی وو
ډیرئے مست دعشق په میُ کړهٔ ساقی وو

مِس وجود دډیرو شوے له دهٔ زر وو
په تحقیق دشیخ نظر کیمیا اثر وو

لکه نمر په تمامی جهان ښکاره دے
زهٔ به څهٔ وایم نهٔ میاشت نهٔ ستاره دے

دآفتاب صفت لهٔ نور دآفتاب کاندی
که اوصاف ئے ذره کاندی ترغاس لاندی

پس له دۀ د دۀ پښتانه بل ظاهر نۀ شـۀ — په دې ملک په درست افغان بل ظاهر نۀ شۀ

وُدُنیا وَته ئې شا په عقبا مخ وو — چه مُرید به شۀ د دۀ د مغۀ سخ وو

سنه خُلفاء څنې ښکاره پخپل خپل وار شـۀ — د خپل وخت په مُریدانو فیض نثار شۀ

په خلفاءُ کښې ئې مست فقیر جمیل[1] وو — صاحب حال و وستانه ئې قیل وقال وو

ابراهیم[2] غوندې خانی میری ئې پرېښوه — په اختیار ئې فقیری ته غاړه کېښوه

هر یو یار ته ئې دُنیا ښکاره وه خواره — هیڅا نۀ پرېښوه په کور کښې دا مُرداره

په همه وُبانده ئې رحم کردګار کړه
مونږ هم د دوئ په روئ عفوه غفار کړه

---

[1] فقیر جمیل بیګ چه د شاعر تره وو

[2] حضرت ابراهیم اُودهم

# مثنوی

په قیامت به وي د عرش تر سیوري لاندې
بادشاهان چه عادلان شي عدل کاندې

په هر قوم چه کرم د کردګار شي
سرداران به یې دینداره نیکو کاره شي

بنهٔ حاکم رحمت په خلقو د سُبحان دې
بد صورت کهٔ دا انسان لري شیطان دې

نښانه د خدائې د قهر بد حاکم وي
چه هیڅ عدل انصاف نهٔ لري ظالم وي

په هر لوري کا د ظلم لمبې بلې
په کښې ذړونه د عالم کا ځلې بلې

کهٔ هر څو وطن شیرین وي خوږې پرین دي
چه یې چرته آرام شي هورې ته لیږي دي

ظالمان ځان وجهان لره بلا دي
هغه خوار شول چه په ظلم مبتلا دي

# مثنوی

پلار چه هومره ډیر مشفق دې په فرزند
که عصیان د دهٔ له زویه شي څرګند

البته د دهٔ د بخرې نقصان وُکا
د بل زوئې په دې زویه رجحان وُکا

هسې رنګ له یار له یاره لښ آزار شي
وَهرچا وته کښیني څنې یې زار شي

هسې ورور چه یې زوُلې وي له مسوره
په لږ څهٔ یې په زړهٔ بد شي نور یې ګوره

په خدمت کښې که سُستي خدمتګار وُکا ... خپل صاحب ته کرامت دِ اِدرار وُکا
اَمّا خدائے زمونږه هسے مهربان دے ... چه کرم ئے په ښهٔ بد باندے یکسان دے
رزق روزي وَښو وبدو ورکوينه ... په ګناه د هيچا رزق نهٔ وره کوينه
بهره مند دده له خوانه کل عالم دے
که سړے دے که پيرے که کرم نا کرم دے

# مثنوي

له اوله سخن سنج اندېښنه وُکا ... له غه پسه رابيرون آواز ترخله کا
هرګز نهٔ وهي هښيار ترفکره دم ... پاخهٔ وايه کهٔ لا رغهٔ وائے خهٔ غم
اول فکر کړه بيا پس وهه نفس ... بخوا پس کړه چه څوک وواڼي چه بس
په خيرو سري ښهٔ وي له دوابه ... دواب ښهٔ ترتا کهٔ وائے بے صوابه
اول فکر بويه پس وايه ګفتار ... بنياد کيږدي بيا پرے سازکاندي ديوار

چه بے فکره څوک آواز ترخلے بيرون کا
دا رنګ خوئ يائے احمق يائے مجنون کا

———…———

# فرهنګ

| الفاظ | معنی |
|---|---|
| **ا** | |
| اعتمید :- | اعتماد - یقین - باور |
| استغنا :- | بے پروائی - بے نیازی |
| اندوه :- | غم - رنځ |
| اُورګه :- | وریځ |
| اشتغال :- | مشغولا |
| آبق :- | غلام - مریے |
| اتهاله :- | (۱) ایسار (۲) ګوابن - حمله |
| اثمار :- | جمع د ثمر - میوے |
| اُجلاف :- | جمع د جلف - رذیل - نۀ سرے - |
| اراذل النّاس :- | په خلقو کښے د ټولو نه لوئے رذیل - |
| ارغال :- | یرغل - حمله |
| استه دار :- | محتاج - پاسدار - طامع |
| اګر :- | عُود - یو خوشبودار لرګے |
| انند :- | خوشحالی - آرام - عیش |
| امل :- | اُمید - طمع - آرزو |
| اشوب :- | فساد - خوف - غم |
| الست :- | ازل - قدیم |
| اَندرول :- | ګنډل |
| اَلشاء :- | تحریص - پیکل |
| آهو :- | هوسۍ |
| افزونی :- | زیاتیدل - زیات |
| افګاران :- | د افګار جمع - زخمیان |
| اَخ :- | دا کلمه د افسوس او تعجب په وخت بے اختیاره د خلے نه ووځی - |

| الفاظ | معنی |
|---|---|
| اخیار | :- جمع دخیر - بنهٔ خلق - |
| ابلیسک | :- د ابلیس اسم تصغیر |
| اختر | :- ستورے |
| انفعال | :- شرمندگی - ندامت |
| اتصال | :- یوځائے کیدل |
| آز | :- طمع - هوس |
| ایاغ | :- پیاله |
| اعتکاف | :- گوشه نشینی |
| آهنگ | :- قصد - تیارے - توجه |
| اورنګ | :- تخت |
| اخلاف | :- ناخلف - نالائق |
| اشکال | :- (۱) مشکل - سخت (۲) دشکل جمع |
| اسرار | :- جمع دسِر - رازونه |
| الصبوح | :- دسحر شراب |
| اُلوے | :- سوے - وُریت |
| اَلیم | :- درد رسوُنکے - دردناک |
| الم | :- غم رنځ تکلیف |
| اهرمن | :- د آتش پرستو دعقیدے مطابق دوه خدایان دی - خالق خیر یعنی یزدان اوخالق شر یعنی اهرمن - |
| اِمساک | :- شومتیا - بخیلی - |
| انواع انواع | :- قسما قسم - رنگارنگ |
| احداد | :- په جُرم حدلگول - سزا ورکول - تعزیر |
| ایمن | :- مبارک |
| احزان | :- جمع دحُزن - غمونه |
| اندوهگین | :- غمگین |
| انیس | :- دوست ، غمخوار |
| اوجاړ | :- ورانه - غیر آباده |
| ایستاد | :- قیام - تمکاوړه |
| امتناع | :- منع |
| استعداد | :- وَس - طاقت - توان - |
| اَنبوه | :- گڼه گُوڼه - هجوم |
| اثیم | :- گنهگار |
| آئین | :- رسم - عادت |
| اشرار | :- دشریر جمع - بدخلق |
| اَمر | :- حکم |
| اجتناب | :- تیښته - پرهیز کول - |
| امانت | :- مدد کول - مرسته کول - |

| الفاظ | معنی |
|---|---|
| آسیب | :- درد - تکلیف - بلا - مصیبت<br>پیریان - د پیریانو سیورے - |
| اُوشار | :- څرګند - ښکاره |
| اهلِ سعیر | :- دوزخیان |
| آھومن | :- د هوسئ په شان |
| اِساس | :- بنیاد |
| اماس | :- پاړسوب |
| امیخته | :- یوځائے - مرکب |
| اوسپرین | :- د اوسپنے |
| ایذا | :- آزار - تکلیف |
| افسر | :- تاج |
| ارجل | :- ماتل - ایسار |
| اشجار | :- د شجر جمع - وُنے |
| الوان الوان | :- رنګا رنګ - قسما قسم |
| ارجلی | :- تزلزل - بےچینی - فساد - رخنه |
| استخوان | :- هډوکی |
| استواځے | :- استاځے - ریبار - قاصد |
| احتلام | :- خوب کښے انزال کیده |
| اعز | :- ډیر خوښ - عزیز ترین |

## ب

| الفاظ | معنی |
|---|---|
| بدنهاد | :- بد طینته - بد اصله |
| بړی | :- (۱) رشوت (۲) د پرتوګ پورته حصّه |
| بغتةً | :- ناڅاپه - ناګهاته |
| بلوسیدل | :- تعرض کول - چیړل |
| بلبن دل | :- تاوول - تغبتل - نبلیدل - |
| بعید | :- لرے |
| بریان | :- سوے - وریت |
| بهمه | :- د ننګر - خاروے |
| بے زاد | :- بے توښے |
| بیم | :- ویره - خوف |
| بساط | :- فرش - پوزے - درستخوان |
| برلست | :- رسم - دستور - قاعده<br>روش - انتظام |
| بیدر | :- (۱) مکمله سپوږمئ<br>(۲) وچنار یا چنار |
| بیس | :- (۱) مطلب شیر بیر دے .<br>(۲) ځین - ډیر |
| بنده | :- غلام - مریئے |

| الفاظ | معنی |
| --- | --- |
| بُعد | :- فاصله - فرق |
| بوالهوس | :- حرصناک - لالچی - هوسناک |
| بندهٔ زاده | :- د غلام زوئے یا غلام بچه |
| بید | :- وُله - بیدِ مجنون |
| بورجل | :- کوځه - دُرشله |
| بال | :- وزر |
| بوریا | :- بورئ - بوجئ |
| بصر | :- سترگے |
| بے محابا | :- بے دریغه - بے صرفے |
| برجنه | :- د میوے ډکه - باردار ه |
| بُوتراب | :- حضرت علیؓ |
| بلادت | :- کُند ذهن - غبی |
| باده | :- شراب |
| برد | :- ژرے - یخنئ موسم |
| بادپیمل | :- عبث کارکول - بُوس بادول |
| برایه | :- تیره شپه - اورمه شپه |
| بربر | :- هرکله - مرحبا |
| بور | :- پرانگ |
| بهوائی | :- لوئے والے - فخر - غرور |

| الفاظ | معنی |
| --- | --- |
| بلهاری | :- ځار - قربان |
| بیدل | :- عاشق |
| بیک | :- غشے |
| بازی | :- لوبے |
| باز باز | :- بازساتونکے |
| برے | :- ډیر کم مقدار |
| بتول | :- باعصمته - پاکه - د حضرت بی بی فاطمهؓ اعزازی نوم - |
| بیاض | :- کتاب |
| بخمن | :- خوږ - شیرین - |

## پ

| الفاظ | معنی |
| --- | --- |
| پرتل | :- مال واسباب - دسفرسامان |
| پرتلی | :- بارگیر - هغه څاروے چه سامان پرے بار کړے وړے شی - |
| پوشاپوش | :- شورماشور |
| پخشو | :- په آرام - په مزه |
| پهوټ | :- یو بے خونده شان ځتکے دے - |
| پیچوئے | :- کبن لیچ - موږ - د غره د پاسه کږه وږه لار - |

| الفاظ | معنی |
|---|---|
| پُول | :- پیسه |
| پری وَش | :- ښکلے - حسین |
| پرو | :- وزرے - پرونه |
| پھُوره | :- پُوزے - چټائی |
| پتنګ | :- پرانګ |
| پسخاک | :- غم - نوُل - فِکر |
| پُرتګالی | :- یو قسم شراب چه اُووه ځله کشید کیږی - شراب هفت آتشه |
| پوښل | :- پټول |
| پورؤل | :- پورکوُل - قرض اخستل - |
| پرویز | :- د ایران د مشهور بادشاه خسرو پرویز نوُم چه د هُرمز زوئے او نوشیروان نمسے وو - د فرهاد معشوقه ئے ملکه وه - |
| پیرل | :- اخستل |
| پور | :- قرض |
| پدیدار | :- ښکاره - څرګند - ظاهر |
| پیلے | :- پیاده |
| پسلے | :- کالی یا زیورے چه پغاره وی |
| پسول | :- کالی - زیور - |

| الفاظ | معنی |
|---|---|
| پلورل | :- خرڅول - فروخت کوُل - |
| پروین | :- (۱) د یو ستوری نوم (۲) د سپوږمئ په اتهٔ ویشتو منزلونو کښے د یو منزل نوم - |
| پیرونه | :- تلے پیرونه یا اُووهٔ خویندے - |

## ت

| الفاظ | معنی |
|---|---|
| تاب | :- تاوُ - وَل |
| تانده | :- شنه - بنیرازه - |
| تجنیس | :- هم جنس کیدل - یو شان کیدل - د علم بدیع د یو صنعت نوم - |
| تخمیس | :- خمیره کیدل - |
| ترب سیَن | :- یعنی ټول قرآن شریف د بسم الله د "ب" نه واخله د آخری سورة "والناس" تر "س" پورے - |
| تفرّج | :- تفریح - سیل |
| تفضیل | :- فضیلت - شرف |
| تلیدل | :- تو ئیدل - غورځیدل - |
| توامان | :- غبرګ یا جوړه پیدا شوی ماشومان - |
| تیره دل | :- ظالم - نا ترسه |
| تجمل | :- دبزا |

| الفاظ | معنی | الفاظ | معنی |
|---|---|---|---|
| توانگر | :- مال دار - غنی | تَوَلّا تبرّا | :- تولا یعنی دوستی - تبرّا - دچانه ځان بری کول - |
| تسبیح | :- پاکی بیانول - سبحان الله ویل | تزئین | :- زیب و زینت ورکول - آرائش زیبائش بنګلا - |
| تحزین | :- آراسته کول - | تراب | :- خاورے |
| تاتار | :- ترکستان | تروړئ | :- لومبړه |
| تعجیل | :- جلدی | تاړ | :- دکجورےپه شان دونے ونے میوه چه داوبو نه دکه وی او په ځنلو سے سرے معمولی نشه کیږی - |
| ترسا | :- (۱) نصاری (۲) عابد - زاهد (۳) راهب - | | |
| تجلّا | :- رڼا | | |
| تلف | :- ضائع | | |

**ټ**

| الفاظ | معنی | الفاظ | معنی |
|---|---|---|---|
| ترو | :- نو | تندور | :- یوځائے - انبار - ډیرے |
| تفرج | :- خوشحالی - عیش | ټیکے | :- کمزورے - ډنګر - |
| توبرے | :- دغشی ځوکه | ټمیدل | :- دسپو غپیدل - |
| تلافی | :- بدله - احسان | ټانک | :- وخت - موقع |
| تروټه | :- نقصانی - تاوانی | | |

**ث**

| الفاظ | معنی | الفاظ | معنی |
|---|---|---|---|
| تورانی | :- ترک او مغل | ثوابت | :- هغه ستوری چه په ځائے ولاړ وی او حرکت نهٔ کوی - |
| تهی | :- دتل شراب - وروستی شراب - | ثقلین | :- (۱) اهل بیت (۲) بنیادم او پیریان |
| تول | :- کوکروندے | | |
| تصدیع | :- دسر درد - تکلیف - | | |
| تحت الثریٰ | :- دمزکے تل - بیخ | | |

| الفاظ | معنی | الفاظ | معنی |
|---|---|---|---|

## ج

جوکه :- (۱) بچوره (۲) تول - وزن

جاوید :- تل، همیشه، دریم

جسر :- پُل

جگی جگی :- دخواست او التجا کلمه

جند :- تن، وجود - ځان

جهر :- ښکاره - په جار

جبین :- تندے - وچولے

جمل :- اوښ

جهنده :- محرک - حرکت کوونکے

جرے :- مارچرئ - تریاق

جُرعه :- گوټ

جُرعه چشان :- گوټ څښونکی

جلاجل :- تمبل یا داریال کښے دغړولو په وخت
دکنګرو کانو ساز

جل :- (۱) یوخوش آوازه مارغهٔ
(۲) سوے (۳) پیغله جینکئ

جحیم :- دوزخ

جلی :- ښکاره - څرګند.

جهول :- سخت بیوقوف

جمر :- سخاوت - بخشش - جوانمردی.

## ځ

ځُبله :- یوتربله

ځغستا :- ځغاښت - ځغل - دَو - منډه.

ځور :- جور - ظلم، ستم - جبر

ځیر :- په غور او فکر کتل

ځله :- کوشش

ځل :- زین

## چ

چر :- (۱) څر - څرید ل (۲) دچار مخفف یعنی کار

چوی :- ښکلول - بوسه اخستل.

چشت :- چشتیه طریقه.

چوب :- لرګے - مطلب دار دے

چنګ :- پنجه

چم :- کوڅه - محلت

چرکینه :- خیرنه - ګنده

چوړا :- بنګړی

چین :- دتندی ګونجے.

| الفاظ | معنی | الفاظ | معنی |
|---|---|---|---|
| ځ | | حسنات | :- د حسنه جمع نیکئ |
| ځربنبت | :- غنوالے - ځوربوالے | حميم | :- تود - گرم - شدت |
| ځرےبرے | :- باقي پاتے | حبس | :- زندان |
| ځکړل | :- ترل - کیروال - بندول - | حزن | :- غم - اندوه |
| ځره | :- (۱) توول - همه - سراسر | خ | |
| | (۲) خالي لاس - بےوسلے | خائف | :- خوف - ويره - ترهه |
| ځخواکی | :- څاڅکی | خپسه | :- سراپا - پښو ته ترسره |
| ځلورقل | :- څلور آخرى سورتونه | خت | :- قميص - کرته - |
| ح | | خفی | :- پټ - پنهان |
| حاقاف | :- ح+ق = حق | خضرؑ | :- دیو مشهور پیغمبر یا ولی نوم دے - د چا متعلق چه دا مشهوره ده چه گمراهانو ته لار ښائ - |
| حذر | :- (۱) خوف - ويره (۲) احتياط | خیر | :- ممتاز - تیار - اماده |
| حليم | :- بردبار - برداشت کوونکے | خروار | :- اووه دړئ |
| حنا | :- نکریزے | خرابات | :- میخانه |
| حات | :- ملکری - حاميان | خیرالانام | :- په نبیانو کښے غوره - مطلب رسول صلی الله علیه وسلم دے - |
| حجت | :- بحث | ختنین | :- زومان |
| حظ | :- خوند - لذت - مزه - | | |
| حرير | :- ریښم | | |
| حبطه | :- ضائع | | |
| حلاوت | :- خوږ والے | | |

| الفاظ | معنی |
|---|---|
| خرخښې | :- لانجې |
| خفت | :- سپکوالے - سپکاوے |
| خاشع | :- عاجزي کوونکے |
| خروش | :- شور - جوش |
| خاتم | :- مُهر |
| خورماخور | :- پریشان |
| خارجي | :- د رافضیانو خلاف یوه فرقه چه اصحاب ثلثه بنهٔ گڼړی او حضرت علی رض ته بنهٔ نهٔ وائي - دوئ په حضرت علیؓ خروج کړے وو - ځکه ورته خوارج یا خارجیان ویلے شي - دد ے فرقے یو سړی ته خارجي وائي - |
| خولے | :- ټوپئ |
| خصمان | :- د خصم جمع دښمنان |
| خُرم خورسند | :- خوشحاله |
| خرخاری | :- دوهٔ خرهٔ لکه چه یو بل له ښمتونه یا ملا گانے گروی - یعني د یو بل حاجت روائي هم کوی - خو ورسره ورسره د یو بل احسان هم کوزوی - |

## د

| الفاظ | معنی |
|---|---|
| ډوک | :- درد - تکلیف |
| دارا | :- د ایران د یو پخوانی بادشاه نوم - چه د سکندر یونانی نه ئے ماتے کړے وه - او وُوژلے شو - |
| دون همت | :- کم همت |
| ډُرد | :- د شراب و فضله - ریشتلے - (تلچھٹ اردو) |
| درمانده | :- پښیمان |
| دانه | :- گاوز - غُټکے |
| دسترس | :- قابو |
| دسماله | :- سترے دسماله - پټئ - پهه |
| دَدُ | :- خونخوار ځناور لکه پړانګ لیوهٔ وغیره - |
| درهم | :- پریشان |
| دامان | :- لمن |
| درمان | :- علاج - دارو |
| دَښمني | :- دشمني |
| دَهر | :- دنیا |

الفاظ — معنی

داد :- ورکړه - بخښنه
داریا :- تمبل
دربیشت :- خوږه - شیرینی
دُردآشام :- شراب څښونکے
درهم :- ګړوړه
دروه :- درغلی - دغا - فریب
دلق :- ګودړئ
دُوند :- خړه - غبار
دمع :- ؤښکے
دون :- کمینه - رذیل
داړل :- وهل - ژوبله کول -
دُره دار :- د دُرے خاوند - مطلب حضرت علیؓ دے۔
دواب :- دسورلئ او بار بردارئ ځناور - لکه اُس
اُوښ او اوښی وغیره -

ډ

ډمه :- نائی ګنړه - نایڼړه -

ذ

ذَم :- بدوئیل -
ذیَب :- شرمخ -
ذرّیت :- اولاد - نسل - کوُل -
ذکا :- ذهین
ذهَب :- سرهٔ زر
ذقن :- زنه
ذی النّورین :- امیرالمومنین حضرت عثمانؓ چه د
دوُو نورونو یعنی د رسول اکرم صلی اللّٰه
علیه وسلم د دوه لوڼو حضرت رقیهؓ
او ام کلثومؓ خښتن -

ر

رنتھمبور :- د راجستھان (بھارت) د جے پور ریاست
په یو مزغه قلا چه اورنګزیب پکښے
خوشحال خان خټک قید کړے وو -
ریش :- زخم - پرهر -
روکه :- نغده او کره (روپئ)
رکشائل :- پرانستل -
رلشخند :- ټوقے - خندا - ټچموزے
رستګاری :- خلاصے
رمق :- باقی ځان
رقم :- لیکل -

الفاظ — معنی

راغ :- ورشو - سبزه زار

رسن :- رسئ - پړے

رَډے رډے :- عصه ناکے

زمیم :- زاړهٔ - وراستهٔ

رافضی :- شیعه

درخشان :- روښن - روښانه

رفض :- درافضیانو عقیده - پریښول - ترک کول .

رستم :- دایران دمشهور پهلوان زال بن سام زوئ .

## ز

زاد :- دلارے دسفر خرچ - خوراک توښه .

زنخ :- زنه

زیار :- افسوس - ارمان (۲) کوشش

زار :- شکوه - شکایت

زشتی :- بدرنګی - بدی - خزانے

زانی :- زناکار

زوز :- منع - حرام

زاغ :- قارغهٔ

زیرمه :- علاج

زهوب :- نَو - وینے زوے .

زباد :- ښکاړهٔ - ثابت

زیبا :- حسین - ښکلے

زګروا :- زوړېګے - زبیږګے

زِنّار :- هغه تارچه هندوان ئے غاړه کښے اچوی .

زیاده وُل :- دوباره کول - یاده وُل

زدنی عِلمًا :- ډیرے کړه علم

زیب وزین :- زیب او زینت .

## ژ

ژواک :- ژوند

ژمنه :- لوظ - قول - وعده

ژوی :- ژوندے - زنده سر

ژغورل :- په امان ساتل - محفوظ ساتل .

## س

سامعان :- اوریدونکی

سپهر :- آسمان

| الفاظ | معنی |
| --- | --- |
| سجین | :- اووم دوزخ |
| سحاب | :- وریځ |
| سرزده | :- سروهلے |
| سمخ | :- سوړ - یخ لکه سوړ سمخ |
| سمن | :- چامبیل |
| سمند | :- آس |
| سیال | :- اسیل - همسر |
| سیلی | :- بنګړے - کړه |
| سمین | :- غټ - څورب |
| سوبه | :- تسلی - آبرو - ناموس - فتح کامیابي. |
| سیادت | :سرداری - بزرګی |
| سعادت | :- نیک بختی |
| سرشت | :- فطرت - خټه |
| سرنوشت | :- قسمت - نصیب |
| سکه | :- دا لفظ په معنی د "نو" او په کلام د زور اچولو د پاره هم راځی. |
| سمخ | :- خوشحالی |
| سمور | :- دلومبړے غوندے دیو ځناور پوستکے چه پوستین ترے جوړیږی. |
| سیماب | :- پاره |
| سعید | :- بختور |
| سپانده | :- سپیلنے |
| سیاره | :- ساه لنډے - دمه |
| سږ | :- سختکال |
| ستی | :- دهندوانو یو زوړ رسم وو. چه که دکوم هندو خاوند به مړشو. نو ښځے به ورسره ژوندے ځان سیزلو. دغه رسم ته به ئے "رسم ستی" وئیل کو ے ښځے به چه دخپل مړخاوند سره ژوندے ځان وسیزه. هغے ته به ئے "ستی" وئیل |
| سعیر | :- داورشعله - ددوزخ دځلورم طبقے نوم. |
| سپر | :- ډال |
| سفالی | :- دتهیکری یا پیکری. |

| الفاظ | معنی | الفاظ | معنی |
|---|---|---|---|

سمندر :- یو ځنبجے چه اور کښے ژوند کا

سمر :- قیصه

سروش :- فرشته - پیغام - خوشخبری -

سکنات :- دسکنه جمع - ځائے دوسیدلو - یعنی کور -

سالوس :- فریبی - دروغژن

ساعد :- لاس میړوند

سفال :- خاوړین لوښے

## ش

شرالانام :- خلقو کښے دټولو نه زیات شری -

شِنا :- لامبو - تاری

شب پرک - بناپیرک

شوپرک وار :- دبناپیرک پشان

شب چراغ :- اور اوړکے

شیخین :- دشیخ جمع - مقصد حضرت ابوبکرؓ او حضرت عثمانؓ دے -

شین شین :- په نازنخرو

شید :- مکر - فریب - دروغ

شیوه :- خیال - طریقه - ناز وانداز

شیب :- زوړ - بوډا

شبگیر :- شب خیز - شپه روڼ وُنکے -

شبان :- شبون

شلانړے :- سمسرے - خادمے

شمال :- باد - بادِ شمال

شنوا :- اوریدونکے

شاطر :- چالاک

شکیب :- صبر

شومل :- څښبل

شماتت :- دچا په تباهئ او شکست خوشحالی کول -

شحنه :- کوتوال

شفتین :- شونډے - لبان

شقی :- بدبخت - سنگدل -

## ص

صهبا :- شراب

صنم :- بت - معشوق

صباحت :- سپینوالے - بناست -

صومعه :- خانقاه - دنصاریٰ و عبادت خانه -

صنعان :- دیو صوفی نوم دے چه دیوے کافرے

| الفاظ | معنی | الفاظ | معنی |
|---|---|---|---|

بنځې په عشق کښې د اسلام نه وګرځېدو
خو بیا ئې هدایت وموندو - بنځه او
خاوند دواړه مسلمانان شول -

صمصام :- توره

صفی :- خالص دوست - برګزیده - صاف

صحو :- هوشمندی، هوښیاری - عقلمندی.

طالع :- نصیب - قسمت

طهور :- پاک - صاف

طول امل :- وږده آرزو

طوبیٰ :- خوشخبری - بشارت -
ډیر پاک - جنت کښې د یوې ونې نوم -

طرب :- خوشحالی

طیور :- مارغان

طاق :- مجازاً ختم

طنازئ :- نازونه - اشارو کښې خبرې کول -

## ظ

ظلمانی :- توره تیارهٔ

ظلوم :- ظلم

## ع

عرعر :- یو خوشبو دار بوټے

عسلی :- ګبین - عسل - شهد

عِللی :- د علتونو او شک شوبهو نه ډک

عمّال :- د عامل جمع حاکمان

عاریت :- قرض

عنب :- انګور

عذار :- اننګی - بارخو

عیادت :- پوښتنه - بیمارپرسی

عصیان :- نافرمانی

عرفان :- پیژند - شناخت

عَلف :- واښهٔ - چاره

علائق :- د علاقه جمع تعلقات

عاق :- د مور پلار نافرمانی اولاد

عسس :- کوتوال - محافظ د ښهر

عارض :- اننګی - بارخو

عینین :- سترګے - د عین جمع

عظام :- د عظم جمع - هډوکی.

| الفاظ | معنی | الفاظ | معنی |
|---|---|---|---|
| عمیم | :- عام | غندنه | :- مُذمّت |
| عامل | :- عمل کونکے - حاکم | غراب | :- قارغهٔ |
| عبیر | :- یوه خشکه خوشبو چه د صندل او گلاب نه جوړیږی . | غُځګے | :- غواړئ - غوے |
| عقد | :- نکاح | | **ف** |
| | **غ** | فتوحات | :- څوانمردی - سخاوت - مروّت |
| غل وغش | :- حیران والے - کینه - خیانت | فم | :- خله |
| غم رُبا | :- غم وړونکے | فرسخ | :- کروه - د دریو میلو مسافت |
| غاؤ | :- غوغا - شور | فر | :- شان - شوکت . |
| غضنفر | :- زمرے | فائق | :- برتر - وُچت |
| غمزه | :- نازو ادا | فِکرت | :- فکر |
| غواص | :- مرغُوبۍا | فرهنګ | :- علم - پوهه . |
| غَره | :- مغرور | فراغ | :- فراغت |
| غول | :- فوځ | فهیم | :- هوښیار - دانا |
| غریو | :- (۱) فریاد - شور - غوغا (۲) ژړا ته تیار . | فقر | :- فقیری - افلاس |
| غلیم | :- دښمن | فرقدین | :- د قطب شمالی مخه دوه ستوری چه قطب سره دی او ګیرچاپیره ترے نه تاویږی . |
| غزاله | :- هوسئ | | **ق** |
| غنرے | :- عنکبوت - جولاګے | قسیم | :- ویشونکے - تقسیم کننده . |

| الفاظ | معنی | الفاظ | معنی |
|---|---|---|---|
| قبلی | :- دوړومبے نه داول نه۔ | کور | :- ړوند |
| قُوت | :- رزق - روزی | کیش | :- مذهب |
| قضا | :- شا | کوثر | :- جنت کښے دیوے چینے نوم |
| قطعیت | :- پریکړه - پریکوُل | کف | :- تلے |
| قراضے | :- دسرو یا سپینوزرو ذرے | کسی | :- (۱) کتل (۲) کاتی۔ |
| قباحت | :- بدرنگی | کام | :- صبا - کانده - مراد |
| قرب | :- نزدیکت | کمامت | :- کمے |
| قال | :- قول - خبره | کناس | :- خاکروب |
| **ک** | | کشاکش | :- خوشحالی - عیش - سیل - تماشا |
| کافی | :- پخوانی - لرغونی - قدیمی | کرباس | :- زیگه جامه - غټه جامه |
| کاه | :- واښهٔ | کرمونه | :- دکرم جمع چنجی |
| کروړی | :- کروړپتی | کجل | :- رانجهٔ - توتیا |
| کوبه | :- قـلا | کودکی | :- وړوکوالے - هلکوالے |
| کارزار | :- جنگ - معرکه | کاڼئ | :- یعنی ُوکړئ |
| کَر | :- کاڼړهٔ | کهین | :- زاړهٔ - کم قیمته |
| کوُنے | :- کوُنډه | کلانی | :- لوئے والے |
| کوکب | :- ستورے | کاکل | :- زُلفے |
| کنشت | :- کوجه | کبنسیه | :- یعنی له کبنسیه - له بنګته - نرخاتهٔ۔ |
| | | کوپارونه | :- عجائبات ، عجیبه کارونه۔ |

| الفاظ | معنی | الفاظ | معنی |
|---|---|---|---|
| ګار | :- درنګ - کان - غر . | ګزنګ | :- غشے |
| **ګ** | | ګزیر | :- علاج - تدبیر |
| ګردباد | :- دپیریانو دولئ - سائیکلون | ګوش | :- غوږ |
| ګریستین | :- ژړا | **ل** | |
| ګهنره | :- زیور - لالے | لښل | :- کوچ کول - کډه کول |
| ګلِ ولاله | :- خټے او اوبه | لښلې | :- تللی - چه لاړ وی |
| ګیلان | :- بغداد کښے دیو کلی نوم | لل | :- ګوتے |
| ګهه ګهے | :- کله کله | لهو لعب | :- عیش وعشرت |
| ګلګونے | :- دګل په رنګ | لاټه | :- خټے - چقړے |
| ګانده | :- سبا | لواتے | :- فراخی - پرانستے |
| ګړت | :- دګتو مینځ . | لوړل | :- ځاریدل - قسم خوړل . |
| ګوګل | :- سینه | لاغ | :- دروغ |
| ګوټے | :- غونډسکه - پنډوس مقصد سبقت وړل | لیږدی | :- ډېر وی - روان دی . |
| ګری | :- منګی | لئیم | :- شوم - کنجوس - تینګ |
| ګوشمالی | :- سزا | لعن | :- لعنت - نفرین |
| ګالل | :- ساتل | لایزال | :- بے زواله |
| ګلیم | :- کنډ - ګودړئ | لهرلهر | :- چپے چپے - په موجونو |
| ګول | :- ناپوهه - نادان | لارغه | :- دوستو - پس - دیل - ځنډه |
| | | لیل | :- شپه |

| الفاظ | معنی | الفاظ | معنی |
|---|---|---|---|
| م | | مشرب | :- پیاله - کوزه - |
| مأوطین | :- اوبه او خاوړے | معبّر | :- تعبیر پیش کوونکے |
| متپ | :- لاس - زور - قوت | ممات | :- مرگ |
| مآب | :- دواپس کیدلو ځائے - ځائین ے داوب لفظ - | مفطور | :- پیدا |
| محصّل | :- حاصلات او محصول وصولوونکے | محسود | :- هغه سړے چه څوک ورسره حسد نهٔ کا |
| مبین | :- څرګند - ښکاره | مراجعت | :- واپس کیدهٔ - جار وتل - |
| مربوب | :- پالنه او پرورش | مُل | :- شراب |
| مستجاب | :- قبول شوے | مُزین | :- آراسته کړے شوے - |
| مُقِر | :- اقرار کوونکے | مُو | :- ویښته |
| مقدم | :- راتلل - راغله - راتلنه | مُستغنی | :- بے پروا |
| ممتلی | :- ډک - پُر | مُصفا | :- پاک - صاف |
| منال | :- مال دولت | میور | :- طاؤس |
| منی | :- کبر - غرور | مخ | :- مثال - نظیر |
| مفتخر | :- فخر کوونکے | مماری | :- بگی برگی - دوکه - چل ول - |
| مشاطه | :- نائی ګنړه | منغض | :- ناراض - دلګیر |
| مکدر | :- خیرن - ناپاک | میشت | :- استوګن - ډیره |
| مجیب | :- قبلوونکے | مصاف | :- جنګ جګړه |
| مسبب | :- سبب جوړوونکے | مملوک | :- غلام - مریے |
| | | ملال | :- خفه - غمګین |

| الفاظ | معنی | الفاظ | معنی |
|---|---|---|---|
| مستعد | :- تیار - موجود | مائزے | :- خفګان |
| مجمله | :- لنډه - مختصره | معنبر | :- خوشبویه |
| مثقال | :- ډیرلږ مقدار | معصیت | :- ګناه |
| مهجور | :- هجران زپلے - بیلتون وهلے | محال | :- ګران - مشکل |
| محتسب | :- کوتوال | مرغچے | :- کم قیمته مرغۍ - مشکنړے |
| مجهود | :- کوشش | مؤدت | :- محبت - دوستی کول |
| مکافات | :- بدله | مُستعار | :- قرض - پور |
| محو | :- ورک | ممسک | :- بخیل - شوم - |
| مونس | :- غمخور - ملګرے - همدم | مستسقی | :- د استسقاء مریض |
| میثاق | :- ازلی تړون | ماذون | :- اِذن کړے شوے |
| ماوا | :- دپناه ځائے - کور - مسکن | مکیال | :- میزان - تله - پیمانه |
| مُوش | :- مږه | منقبت | :- تعریف |
| مرصع | :- منقش - جړاؤ - | معتزلی | :- د معتزله فرقے رُکن - دا فرقه نیکی دخدائے له طرفه او بدی دځـان له طرفه خیال کوی - دکبایرګناهونو مرتکب نهٔ مومن ګنړی او نهٔ کافر - |
| مطول | :- اُږد | مرجع | :- ځائے درجوع |
| ملل | :- راتلل | مهوش | :- د سپوږمئ غوندے - ښکلے - ښائسته - |
| مغطر | :- خفه - دنګیر - ملول | | |
| میزر | :- نقاب - پرده | | |
| مقالی | :- خبرے | | |
| محزون | :- خفه دنګیر | | |

| الفاظ | معنی |
| --- | --- |
| مربوب | :- مخلوق - ساتلے شوے |
| مُرتد | :- نافرمان - ملعون |
| منفعل | :- شرمنده |
| مقرب | :- نزدے کرے شوے |
| ممد | :- مددګار |
| محذوف | :- حذف کرے شوے - لرے کرے شوے - |

## ن

| الفاظ | معنی |
| --- | --- |
| ناسره | :- کوتهے - ناکره |
| نعال | :- پیزار - پنڑے |
| نکال | :- عذاب - درد - تکلیف |
| نهار | :- ورځ |
| نیران | :- اور - دوزخ |
| نوید | :- خوشخبری |
| نجیب | :- شریف - اصیل |
| نقشبند | :- نقاش - مصور - خالق - صانع |
| نبرد | :- جنګ |
| ناوک | :- غشے |
| نورالابصار | :- دسترګو نور - مقصد محبوب دے |

| الفاظ | معنی |
| --- | --- |
| نمری | :- جامے - لتے |
| ندم | :- شرمنده کیدل |
| نائی | :- شپیلئ نوازن |
| نیه | :- نے - شپیلئ |
| نعم | :- نعمتونه |
| نانیر | :- دسرو زرو یوه سکه |
| نقیب | :- ډنډورچی |
| نخا | :- ګډا |
| نتل | :- ذورل - دٹهل - لُوٹهل |
| نولیدل | :- خفګان کول . |
| نفس | :- ساه |
| نافع | :- نفع ورکوونکے |
| نایه | :- شپیلئ |
| نمائیل | :- ښکاره کول |
| ناسره | :- قلب - کوتهه - خراب |
| نغته | :- نغوته - لمسه |
| نغرل | :- څښل - خوړل |
| نهالی | :- بړستن - کانجنړ - څیرک |
| نخول | :- درد - تکلیف |

| الفاظ | معنی | الفاظ | معنی |
|---|---|---|---|
| نو ناحقه | برناحقه ۔ خواه مخواه | وحوش | د وحش جمع ځنګلی ځناور |
| نیش | لشه | وارګونه | ایوتهه ۔ اړوړے |
| نغړے | نغړدے ۔ پټ کړے | ولجه | غنیمت |
| ندیم | دوست ۔ ملګرے | وبله | توتربله |
| نفرین | لعنت ۔ ملامت | وُلے | جرړے ۔ بیخ |
| نخوت | کبر ۔ غرور | واصف | تعریف کوونکے |
| نغوړی | اَوری | وبال | ګناه |
| نقیبان | شاهی دربانان | ورانهٔ | زنګون |
| نانی | منافق | ورغوے | دلاس تلے |
| نردبان | پوړئ ۔ اندرپایه ۔ زینه | ویانه | غږیدونکے ۔ ویُونکے ۔ |
| نمځنه | قدرافزائی ۔ عزت | وَش | زهر |
| نهال | زرغن ۔ کرلے ۔ بنځ | ویل | صفا ۔ روڼ ۔ روښانه |
| **و** | | وَرد | د ګلاب ګل |
| والا | لوئے ۔ وچت ۔ اعلیٰ ۔ بلند | **ه** | |
| وزله | وسیله ۔ ذریعه | هرآئین | هرشان ۔ په هر دستور |
| وُرَه | یعنی ورینره | هم بالین | هم بستر |
| وزان | په اَلوَته | هوړیالے | دهوړ خاوند ۔ ضدی |
| وګړی | خلق ۔ قوم ۔ سړی | هیداد | زورنه |
| وچولے | تندے ۔ جبین | هواد | هیواد ۔ ملک ۔ وطن |

| الفاظ | معنی | الفاظ | معنی |
|---|---|---|---|
| هرانده | :- غالبه - لګیا - | یاهُو | :- تښتُو |
| هدف | :- نښانه - نخښه - مقصد | یَم | :- دریاب |
| هم | :- موږ - غم - اندوه | یاس | :- ناامیدی - |
| | قصد - اراده | | مایوسی - |
| همدم | :- ملګرے - دوست | یمن | :- ښے - راست |
| هوا | :- خواهش | یسار | :- ګس |
| هوډ | :- عزم - استقلال | | چپ |
| | ثبات - ضِد | یګانه | :- بے مثله |
| **ی** | | | لاثانی |
| یُوحا | :- نمر - آفتاب | یُون | :- تګ - رفتار |

